


(پښتو)

# د توحيد كتاب

كوم چې د الله حق دى پر بنده گانو.

ح جمعية خدمة المحتوى الإسلامي باللغات ، ١٤٤٥ هـ

فهرسة مكتبة الملك فهد الوطنية أثناء النشر

محمد التميمي،

كتاب التوحيد -بشتو. / محمد التميمي

-ط٢.- الرياض ، ١٤٤٥ هـ

١٤٦ ص ؛ ١٤ × ٢١ سم

ردمك: ٥-٤٣-٨٤١٢-٦٠٣-٩٧٨

١- التوحيد أ.العنوان

١٤٤٥ / ٨٥٩٩

شركاء التنفيذ:




دار الإسلام



جمعية الربوة



رواد الترجمة



المحتوى الإسلامي



Telephone: +966114454900

ceo@rabwah.sa

P.O.BOX: 29465

RIYADH: 11557

www.islamhouse.com

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَـنِ الرَّحِيمِ

تول د كمال صفتونه خاص الله لره دي، او د الله تعالى درود دي وي پر محمد - صلى الله عليه وسلم، كورنۍ او ملګرو يې.

## د توحيد كتاب

د الله تعالى وينا ده: ما پېريان او انسانان يوازې د خپل عبادت لپاره پيدا كړي دي. [الذاريات: ٥٦].

د الله وينا ده: قسم دى خاماخا په تحقيق سره په هر امت كې مونږ پيغمبر لېږلى(او لمرى يې دا خبره ورته كړې) چې د يو الله عبادت وكړئ او د غيرالله د عبادت څخه ځان وژغورئ [النحل: 36].

د الله وينا ده: پالونكي دې حكم كړى چې يوازې د هغه عبادت وكړئ او له مور او پلار سره ښېګڼه كوئ، كه ستا سره يو له هغوى څخه او يا دواړه زړښت ته ورسيږي؛ هغوى ته اف هم مه وايه، رټه يې مه او له هغوى سره په درناوي خبرې كوه، او د هغوى لپاره د لورېينې په موخه مات غاړى اوسه، او وايه: اې زما پالونكيه! پر هغوى داسې لورېينه وكړه لكه زه يې چې كوچنى روزلى يم. د الإسراء سورت: ٢٣- او ٢٤ آيتونه.

او دا قول يې: او الله ولمانځئ او له هغه سره هيڅ مه شريكوئ. د النساء سورت: ٣٦ آيت

او دا قول يې: ووايه: راځئ زه پرتاسو هغه څه ولولم چې پالونكي مو درباندې ناروا كړي دي هغه دا چې له هغه سره هيڅ مه شريكوئ او له مور اوپلار سره ښېګڼه كوئ، او د بې وزلۍ له وېرې خپل اولادونه مه وژنئ؛ مونږ تاسو او هغوى ته روزي دركوو، او ښكاره او پټو ناروااوو ته مه نږدې كېږئ، او هغه نفس مه وژنئ چې الله يې وژل ناروا كړي دي مګر په حق سره، پر دغو يې تاسو ته حكم كړى ترڅو له عقله كار واخلئ. او د يتيم مال ته مه نږدې كېږئ مګر په هغه لار چې غوره ده، ترڅو هغه ځوانۍ ته نه وي رسېدلى، او پېمانه او تول په انصاف سره پوره كوئ، مونږ هيڅوک د هغه له توان څخه زيات نه مكلفوو، او چې خبره كوئ؛ نو انصاف (رېښتينولي) كوئ، كه څه هم خپلوان وي، او د الله پر ژمنه وفا كوئ، پر همدو يې تاسو ته

حکم کړی، کېدای شي تاسو پند واخلئ.(مخاطب دې امید ولري الله د کیدای شي په درجه کې خبره نه کوي او یا په بل عبارت (کی تذکروا) د دې د پاره چې تاسو پند واخلئ. او یقینا دا(قران او سنت) زما نېغه لار ده؛ نو پیروي یې وکړئ، او په نورو لارو پسې مه ځئ، چې بیا د هغه له لارې خواره واره شئ، پر دغو یې تاسو ته حکم کړی ترڅو ځانونه (له بې لارې) وساتئ. د الأنعام سورت: ۱۵۱- ۱۵۳ آیتونه.

ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي: څوک که غواړي چې د محمد صلی الله علیه وسلم هغه سپارښتنې ته وګوري چې پر هغو یې مهر دی؛ د الله تعالی دا وینا دې ولولي: ووایه: راځئ زه پرتاسو هغه څه ولولم چې پالونکي مو درباندې ناروا کړي دي هغه داچې له هغه سره هیڅ مه شریکوئ. د هغه تر دې وینا پورې: او بیشکه دغه زما نېغه لار ده (آیت).

او له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: زه له نبي -صلی الله علیه وسلم- سره پر خره تر شا سپور وم؛ نو هغه ماته وویل: اې معاذه! آیا پوهېږې د الله حق پر بندګانو څه دی او د بندګانو حق پر الله څه دی؟. ما وویل: الله او د هغه رسول ښه پوهیږي، هغه وفرمایل: د الله حق پر بندګانو دا دی چې هغه ولمانځي او هیڅوک ورسره شریک نه کړي، او د بندګانو حق پر الله دا دی چې هغه چاته سزا ورنه کړي چې له هغه سره یې څه نه دي شریک کړي. ما وویل: ای د الله رسوله! آیا خلکو ته زیری ور نه کړم؟ هغه وفرمایل: نه زیری مه ورکوه چې بیا به په همدې بسنه او اعتماد وکړي او نېک کارونه به پرېږدي. په صحیح بخاري او مسلم کې یې دغه حدیث راوړی.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د پېریانو او انسانانو په پیدایښت کې حکمت.

دویمه: دا چې عبادت توحید دی، ځکه شخړه په همدغه توحید کې ده.

دریمه: یقینا چا چې په توحید راتګ نه کړی؛ هغه د الله عبادت نه دی کړی، چې همدغه کې د الله د هغې وینا معنا ده: (چې تاسو د هغه څه عبادت نه کوئ د کوم چې زه عبادت کوم).

**شلورمه:** د رسولانو په لیږلو کې حکمت.

**پنځمه:** دا چې رسالت ټولو امتونو ته عام دی.

**شپږمه:** دا چې د نبیانو دین یو دی.

**اوومه:** لویه مسئله: بیشکه د الله عبادت نه حاصلیږي مګر په کفر کولو د غیرالله په عبادت، چې په دغه کې د الله د وینا معنا ده: (پس چا چې کفر وکړ په طاغوت (هر هغه شی چې د الله نه په غیر یې عبادت کیدای شي) او پر الله ایمان راوړي (آیت)

**اتمه:** یقینا طاغوت یو عام لفظ دی: هر هغه شی چې د الله تعالی نه یې په غیر عبادت کیدی شي.

**نهمه:** د سلفو په اند په الأنعام سورت کې د دریو محکمو(دلالت یې واضحه دی) آیتونو د شان لوی والی او په هغو کې لس مسئلې دي: لومړی یې له شرک څخه نهي ده.

**لسمه:** د الإسراء په سورت کې محکم آیتونه چې په هغو کې اتلس مسئلې دي، چې الله یې پیل له دغې وینا څخه کړی دی: له الله سره بل معبود مه نیسه، کنه بیا به بد ویلی شوی او شرمیدلی کینې.

او ختم یې په دغه وینا سره کړی. له الله سره بل معبود مه نیسه، چې په دوزخ کې به ملامت او رټل شوی واچول شې. او الله پاک مونږ د دغو مسئلو د مرتبې پر لوی والي په خپله وینا داسې خبردار کړلو: دا هغه څه دي چې پالونکي دې له حکمت څخه درته وحي کړي دي.

**یوولسمه:** د النساء سورت هغه آیت چې د لسګونو حقوقو په نوم نومول شوی دی، الله تعالی پر هغه وینا پیل کړی: د الله عبادت وکړئ او له هغه سره څه مه شریکوئ.

**دولسمه:** د رسول الله -صلی الله علیه وسلم- پر هغه سپارښتنه تنبیه چې د خپلې مړینې پر مهال یې کړې وه.

**دیارلسمه:** پر موږ د الله تعالی د حق پېژندنه.

خوارلسمه: پر الله د بندګانو د حق پېژندنه کله چې هغوی د الله حق ادا کړي.

پنځلسمه: پرته له شکه دغه مسئله ډېری صحابه وو ته ور معلومه نه وه.

شپاړسمه: د کوم مصلحت له مخې د پوهې د پټولو رواوالی.

اوولسمه: مسلمان ته پر هغه څه زیری ورکول چې خوشحالوي يې يو مستحب کار دی.

اتلسمه: د الله د رحمت پر پراخوالي له توکل څخه وېره.

نولسمه: د پوښتل شوي تن د هغه څه په اړه دا وينا چې نه وي ورمعلوم چې: الله او د هغه رسول ښه پوهېږي.

شلمه: له ځينو خلکو پرته د ځينو نوروپه پوهه سره د ځانګړي کولو روا والی.

يوويشتمه: د نبي صلى الله عليه وسلم دا عاجزي چې پر خره يې سپرلی کوله او بل څوک يې ورسره شاته سپرولو.

دوه ويشتمه: پر سپرلی د بل چا ترشا د سپرېدو رواوالی.

درويشتمه: د معاذبن جبل غوراوی.

څلورويشتمه: د دغې مسئلې د شان لوی والی.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د فضیلت د توحید کې او په بیان د هغه څه کې چې ګناهونه ورانوي

او دا وینا د الله تعالی: هغه کسان چې ایمان یې راوړی او له ایمان سره یې شرک ندی ګډ کړی د همدوی لپاره امن دی او هغوی لارموندونکي دي. د الأنعام سورت: ۸۲ ایت

او له عبادة بن صامت –رضي الله عنه– څخه روایت دی وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چاچې دا شاهدي ورکړه چې یوازې الله د عبادت وړ دی هیڅ شریک نه لري او دا چې محمد صلی الله علیه و سلم د هغه بنده او رسول دی، او دا چې عیسی علیه السلام د الله بنده او رسول دی، او د هغه کلمه او د هغه له لوري روح دی چې مریم ته یې وراچولې او داچې جنت حق دی او دوزخ حق دی، الله به یې جنت ته ننباسي پر هر ډول عمل چې وي. هغوی دواړو (بخاري او مسلم) په سند سره روایت کړی او د هغوی دواړو د عتبان په حدیث کې راغلي: پرته له شکه الله پر دوزخ هغه څوک حرام کړي چې دا ووایي: یوازې الله د عبادت وړ دی، پر دغه خبره د الله مخ لټوي.

دابوسعید الخدري رضی الله عنه څخه روایت دی هغه له رسول الله –صلی الله علیه وسلم– څخه روایت کوي چې هغه وفرمایل: موسی علیه السلام وفرمایل: اې پالونکیه! داسې څه راوښیه چې تا پرې یادوم او پرې رابولم. هغه وفرمایل: اې موسی علیه السلام ووایه: له الله پرته بل د عبادت وړ نشته. هغه وویل: ټول بندګان دې دغه وايي؟ هغه وفرمایل: اې موسی علیه السلام! که چېرې اوه اسمانونه او له ما پرته د هغو ابادوونکي او اوه ځمکې په یوه پله کې وي او لا اله الا الله په بله پله کې؛ نو د "لااله الا الله" پله به درنده شي. ابن حبان او الحاکم روایت کړی او صحیح یې بللی.

او د ترمذي روایت چې حسن یې بللی له انس څخه دی: وایي ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل چې فرمایل یې: الله تعالی فرمايي: ای د آدم زویه! پرته له شکه که ته د ځمکې په اندازه له ګناهونو سره راشې، بیا له ما سره په داسې حال کې یوځای شې چې له ما سره هیڅ شی نه شریکوې؛ نو زه به هرومرو د هغې په اندازه له بخښنې درشم.

په دې کې یو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** د الله د پېرزوینې پراخوالی.

**دویمه:** د الله په وړاندې د توحید د ثواب زیاتوالی.

**دریيمه:** د هغه سربېره د ګناهونو بخښل.

**څلورمه:** د هغه آیت تفسیر چې په الأنعام سورت کې دی.

**پنځمه:** د هغو پنځو شیانو په اړه غور کول چې د عبادة په حدیث کې دي.

**شپږمه:** پرته له شکه کله چې ته د عباده او عتبان د حدیث او له هغه وروسته سره یوځای کړې د (لا إله إلا الله) معنا او د مغرورو خلکو تېروتنه به درته څرګنده شي.

**اوومه:** د عتبان په حدیث کې یاد شوي شرط ته پاملرنه.

**اتمه:** نبیان هم د (لا إاله إلا الله) پر فضیلت تنبیه ته اړتیا لري.

**نهمه:** پر ټولو مخلوقاتو د هغې پرغوراوي تنبیه، سره له دې ډېری هغه خلک چې وايي يې تله به يې سپکه وي.

**لسمه:** دا خبره په ډاګه بیانول چې ځمکې هم د آسمانونو غوندې اوه دي.

**یولسمه:** او دا چې هغو لره ابادوونکي دي.

**دولسمه:** د اشعریه وو پر خلاف د صفتونو اثبات.

**دیارلسمه:** کله چې د انس پر حدیث پوه شوې، د عتبان په حدیث کې به پر هغه وینا پوه شې چې "پرته له شکه الله پر دوزخ هغه څوک حرام کړي چې " (لا إله إلا الله) ووايي، پر هغې د الله مخ لټوي، چې د شرک پرېښودل یوازې د هغې کلمې په خوله ویل ندي.

څوارلسمه: په دی خبره فکر وکړه چې الله تعالی عیسی او محمد علیهما افضل الصلات و السلام په دوه صفتونو کې یو ځای کړل: عبدیت او رسالت (دا دواړه د الله تعالی بنده ګان او رسولان وو نه الهه).

پنځلسمه: د عیسی علیه السلام د ځانګړي کولو پېژندګلوي په دې سره چې هغه د الله کلمه ده.

شپاړسمه: د هغه د الله له لوري د روح په توګه پېژندنه.

اولسمه: په جنت او جهنم د ایمان د فضیلت پېژندنه.

اتلسمه: د هغه د وینا پېژندنه (چې پر هر عمل وي).

نولسمه: د دې خبرې پېژندنه چې تلې لره دوې پلې دي.

شلمه: د وجه (مخ) د یادونې پېژندنه.

باب دی په بیان د دې کې چې چا توحید ومانه(عملي یې کړ) هغه به پرته له حسابه جنت ته ننوځي.

او د الله تعالی وینا: پرته له شکه ابراهیم علیه السلام امت وو(د خیر معلم و) همیشه د الله تابعدار و الله ته متوجه و او د مخلوق نه مخ اړوونکی و او له مشرکانو څخه نه و. د النحل سورت: ۱۲۰ ایت.

او الله تعالی فرمایي: او هغه کسان چې له خپل پالونکي سره څوک نه شریکوي. د المؤمنون سورت: ۵۹ ایت

له حصین بن عبدالرحمن څخه روایت دی وایي: زه له سعید بن جبیر سره وم، هغه وویل: چا تېره شپه هغه ستوری ولیدی چې مات شو؟ ما وویل: ماه، بیا یې وویل: خو زه په لمانځه کې نه وم بلکې وچیچل شوم، ویې ویل: نو څه دې وکړل؟ ما وویل: دم مې کړ، هغه وفرمایل: څه شي دېته وهڅولې؟ ما وویل: هغه حدیث چې شعبي راته بیان کړی، هغه وفرمایل څه ډول حدیث یې درته بیان کړي؟ ما وویل: له بریدة بن حصیبب څخه یې راته روایت کړی چې هغه

وفرمایل: له بد نظرې او لړم چیچلو پرته د بل څه دپاره بهتر دم نشته. هغه وویل: هغه چا غوره کار کړی چې دا یې اورېدلي دي؛ خو ابن عباس رضي الله عنهما له نبي صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې هغه وفرمایل: ماته امتونه راوښودلی شول، چې له یو نبي سره مې یوه ډله ولیدله، له بل نبي سره مې یو یا دوه تنه ولیدل، او له بل نبي سره مې هیڅوک هم ونه لیدل، چې همدغه وخت یو لوی تولی ماته پورته کړل شو، فکر مې وکړ چې هغوی به زما امتیان وي، خو راته وویل شول: دغه موسی او قوم یې دی، بیا مې یو لوی تولی ولیدی؛ نو راته وویل شول: دغه ستا امت دی او له هغوی سره اویا زره نور وو چې پرته له حساب او عذاب څخه جنت ته ننوتل. بیا هغه پورته شو او کور ته یې ننوت؛ نو خلکو د هغوی په اړه خبرې پیل کړې، چا ویل: کېدای شي هغوی د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابه وي، او ځینو ویل: کېدای شي هغه خلک وي چې په اسلام کې پیدا شوي دي او له الله سره یې هیڅ نه دي شریک کړي، او ځینو بیا نور څه ویل: چې بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم پر هغوی را ووت او هغوی خبر ورکړ نو رسول الله صلی الله علیه و سلم و فرمایل: هغوی هغه کسان دي چې نه دم کوي، نه داغ ږدي او نه بد فالي نیسي او پر خپل پالونکي بروسه کوي. نوعکاشة بن محصن ولاړ شو او ویې ویل: اې د الله رسوله! دعاء وکړه چې الله ما له هغوی څخه وګرځوي، هغه وفرمایل: ته له هغوی څخه یې، بیا یو تن پورته شو ویې ویل: الله ته دعاء وکړه چې ما هم له هغوی څخه وګرځوي، نو هغه وفرمایل: په دې اړه عکاشه در څخه مخکې شو.

په دې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: په توحید کې د خلکو د مرتبو پېژندنه

دویمه: د هغه د تحقیق معنا څه ده؟

دریمه: د هغه(الله) له لوري د ابراهیم علیه السلام ستاینه چې هغه له مشرکانو څخه نه و.

څلورمه: د هغه له لوري د ولیانو د سردارانو ستاینه چې هغوی له شرک څخه خوندي وو.

پنځمه: د دم او داغ لګولو پرېښودل د توحید له منلو څخه دي.

**شپږمه:** پر ( الله ) توكل د دغو دوارو خوېونو يو ځای كوونكی دی.

**اوومه:** د صحابه وو د پوهې ژوروالی په دې وپوهيدل چې دا نه شي خاصلولای مگر په عمل.

**اتمه:** په ښېگڼې د هغوی تینكار (حرص).

**نهمه:** د كميت او كيفيت له پلوه د دغه امت غوراوی.

**لسمه:** د موسی د ملگرو غوراوی.

**يوولسمه:** پر نبي عليه السلام د امتونو وړاندې كول.

**دولسمه:** دا چې هر امت به يوازې له خپل نبي سره بې را پورته كيږي.

**ديارلسمه:** د هغه خلكو لږوالی چې د نبيانو بلنه يې منلې.

**څوارلسمه:** هغه (نبي) چې هيچا يې بلنه نه وې منلې يوازې به راځي.

**پنځلسمه:** د دغه علم پايله دا ده چې پر زياتوالي يې څوک مغرور نه شي او په كموالي يې مه راضي كيږه.

**شپاړسمه:** له بدو ستركو څخه د دم او تبه يا دې ته ورته ناروغي اجازه.

**اولسمه:** د پخوانيو د علم ژوروالی د هغه د وينا له امله چې ويلي يې دي: (هغه چا ډېر غوره كار كړی چې هغه يې اورېدلي، خو داسې او داسې) له دې څخه څرگنده شوه چې لومړی حديث د دويم سره په ټكر كې نه دی.

**اتلسمه:** پخواني له دې څخه لېرې وو چې پر هغه څه د چا ستاينه وكړي كوم چې به په چا كې نه و.

**نولسمه:** د هغه دا وينا: چې ته د هغوی له ډلې يې، دا د نبوت له نښانو يوه نښه ده.

**شلمه:** د عكاشه فضيلت.

**يوويشتمه:** د معاريضو (كنايو) كارونه

## باب دی؛ له شرك څخه د ويرې په اړه.

او د الله جل جلاله وينا: پرته له شکه الله دا نه بخښي چې له هغه سره شرک وشي او له دغه پرته چې چاته وغواړي بخښي يې. د النساء سورت: ٤٨ ايت.

او خليل عليه السلام فرمايلي: او ما او زما اولادونه د بتانو له عبادت څخه وساته لدې چې بوتان ولمانځو.

د ابراهيم سورت: ٣٥ ايت

او په حديث کې دي: ترټولو زيات ويروونکی شی چې زه د هغه په اړه پرتاسو داريږم هغه کوچنی شرک دی، نو د هغه په اړه پوښتنه ترې شوه؟ هغه وفرمايل: رياء (ځان ښوونه).

او له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چې په داسې حال کې مړ شي چې له الله پرته بل سيال رابولي، هغه به دوزخ ته ننوځي. بخاري روايت کړی. او د مسلم په روايت کې له جابر رضي الله عنه څخه راغلي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چې له الله سره په داسې حال کې مخ شي چې له هغه سره هيڅ نه شريکوي جنت ته به ننوځي، او څوک چې په داسې حال کې ورسره مخ شي چې بل څه ورسره شريکوي دوزخ ته به ننوځي.

په دې کې يوشمېر مسئلې دي:

**لومړی:** له شرک څخه ويره.

**دويمه:** دا چې رياء (ځان ښودنه) له شرک څخه ده.

**درېيمه:** دا چې هغه کوچنی شرک دی.

**څلورمه:** دا چې هغه ترټولو زيات ويروونکی دی چې د نېکانو په اړه ترې ويره وي.

**پنځمه:** د جنت او دوزخ نېږدېوالی.

شپږمه: د هغو دوارو د نېږدېوالي ترمنځ په یو حدیث کې جمعوالی.

اوومه: داچې څوک له الله سره په داسې حال کې مخ شي چې څوک ورسره نه شریکوي جنت ته به ننوځي، او څوک چې په داسې حال کې ورسره مخ شي چې څه ورسره شریکوي دوزخ ته به ننوځي، که څه هم هغه ترټولو خلکو زیات عبادت کوونکی وي.

اتمه: لویه غوښتنه د خلیل د ځان او اولادونو لپاره د بتانو له لمانځلو څخه د خوندیتوب غوښتنه ده.

نهمه: د ډېری خلکو حال ته په کتو سره د هغه د وینا له مخې: اې زما پالونکیه! پرته له شکه هغوی ډېری خلک لارورکي کړي دي.

لسمه: په دې کې د (لا إله إلا الله) تفسیر دی لکه څنګه چې بخاري بیان کړی.

یوولسمه: د هغه چا غوراوی چې له شرک څخه خوندي وي.

★★★★★★★★

## باب دی په بيان د رابللو د " لا إله إلا الله" کلمې شهادت ته.

او د الله تعالی هغه وینا : ووايه دغه زما لار ده، زه او هغه څوک چې زما پیروي يې کړې ده الله ته په بصیرت بلنه کوو، او الله لره پاکي ده او زه له مشرکانو څخه نه یم. د یوسف سورت: ۱۰۸ ایت

له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم کله معاذ یمن ته ولېږه ورته يې وویل: ته د اهل کتابو یو قوم ته ورځې، نو لومړی يې د لا اله الا الله شاهدي ورکولو ته راوبوله، او په یو روایت کې دي چې د الله توحید ته يې راوبوله – که يې په دغه کې ستا پیروي وکړه، بیا ورته وښیه چې الله پر هغوی په یوه ورځ او شپه کې پنځه لمنځونه فرض کړي دي، که يې په دغه کې هم ستا پیروي وکړه بیا خبر ورکړه چې الله پر هغوی زکات فرض کړی چې له شتمنو يې اخېستل کیږي او بې وزلو ته يې ورکول کیږي، که يې په دغه کې هم ستا پیروي وکړه؛ نو له غوره مالونو څخه يې ډډه وکړه، د مظلوم له ښېرا څخه ځان وساته، ځکه د هغې او الله ترمنځ هیڅ پرده نشته. هغوی دواړو(بخاري او مسلم) روایت کړی دی.

او د هغوی دواړو په روایت کې له سهل بن سعد څخه راغلي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خیبر په ورځ وفرمایل: سبا هرومرو هغه سړي ته بیرغ ورکوم چې هغه له الله او د هغه له رسول سره مینه لري او الله او د هغه رسول هم ور سره مینه، الله به د هغه پر لاسونو فتح راولي. نو خلکو توله شپه په بحث کولو تېره کړله، چې له هغوی به چاته بیرغ ورکول کیږي، کله چې سهار شو، هغوی وختي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغلل، هرچا هیله لرله چې هغه ته به بیرغ ورکړل شي، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: علي بن ابي طالب چېرې دی؟

ورته وویل شول: د هغه سترګې خوږیږی، بیا يې هغوی ورولېږل او هغه راوستل شو، په سترګو کې يې لاړې ورواچولې او دعا يې ورته وکړه؛ هغه داسې جوړ شو لکه بیخې چې ناروغ نه وي، بیا يې بیرغ ورکړ؛ نو ويې فرمایل: په طبیعت ولاړ شه تردې چې د هغوی سیمې ته ورسېږې،

بیا هغوی اسلام ته راوبوله او د الله تعالی پر واجب حق یې خبر کړه، پر الله قسم که الله ستا له امله یو سړي ته لار وښيي دا درته غوره ده تر سرو اوښانو.

(یدوکون) یعنې په بحث کولو بوخت وو.

په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

لومړی: دا چې د الله لوري ته بلنه د هغه چا لار ده چې د نبي - صلی الله علیه وسلم- پیروي یې کړې ده.

دویمه: اخلاص ته پاملرنه، ځکه ډېری خلک که حق ته بلنه ورکوي؛ نو هغه ځانته بلنه ورکوي.

درېیمه: دا چې بصیرت له فرائضو څخه دی.

څلورمه: د غوره توحید له دلائلو څخه دا هم دي چې الله له ښکنځلو پاک دی.

پنځمه: د شرک له بدوالي څخه الله ته بدرد ویل دي.

شپږمه: دغه یې له اړینو مسئلو څخه ده: د مسلمانانو لېرې والی له مشرکانو څخه ترڅو له هغوی ونه ګرځي که څه هم شرک ونه کړي.

اوومه: دا چې توحید لومړی واجب دی.

اتمه: پر هغه تر تولو لومړی آن له لمانځه مخکې پیل کیږي.

نهمه: د الله د یووالي معنا همغه د لا إله إلا الله معنا ده.

لسمه: دا چې انسان کله له اهل کتاب څخه وي، خو هغه نه پرې پوهیږي او یا پوهیږي خو عمل نه پرې کوي.

یوولسمه: په تدریجي ډول ښوونې ته پاملرنه.

دولسمه: دا چې تر ټولو لومړی پر مهم کار پیل وشي.

دیارلسمه: د زکات مصرف او اهل خلک.

څوارلسمه: د عالم لخوا د متعلم د شبهې کشف او ښکاره کول.

پنځلسمه: له غوره مالونو اخیستلو څخه منع.

شپاړسمه: د مظلوم له ښېرا څخه ځان ساتل.

اولسمه: پر دې خبره خبرول چې د مظلوم دعا نه ردیږي.

اتلسمه: د توحید له دلایلو څخه دا هم دي چې د رسولانو پر سردار او ولیانو پر سردارانو کومې ستونزې لوړه او کړاو راغلي دي.

نولسمه: د هغه وینا: (چې هرومرو به بیرغ ورکوم) ترپایه، دا د نبوت له نښانو یوه نښه ده.

شلمه: د هغه په سترګو کې لاړې وراچول هم د نبوت له نښانو څخه یوه نښه ده.

یوویشتمه: د علي رضي الله عنه فضیلت.

دوه ویشتمه: د صحابه وو فضیلت په دغه شپه کې د فکر کولو کې او د بریا له زیري څخه د هغوی د بوختیا له امله.

درویشتمه: پر تقدیر ایمان لرل څکه چې څوک یې توان نلري هغه ته د حاصلېدلو له امله او څوک یې چې هڅه کوي له هغه څخه د منعې له امله.

څلورویشتمه: د هغه په وینا کې ادب چې (په خپل طبیعت ولاړ شه).

پنځه ویشتمه: له جګړې مخکې اسلام ته رابلنه.

شپږویشتمه: دا چې دا خبره هم روا ده چې که څوک مخکې رابلل شوي وي او جګړه ورسره شوې وي.

**اوه ويشتمه:** په حکمت سره بلنه لکه چې فرمايي: (هغوی پر هغه څه خبر کړه چې پرې واجب دي.

**اته ويشتمه:** په اسلام کې د الله د حق پېژندنه.

**نه ويشتمه:** د هغه چا ثواب چې پر لاسونو يې يو سړی لارښوونه ومومي.

**ديرشمه:** پر فتوا د قسم (لوړې) کول.

★★★★★★★★

## باب دى په بيان د وضاحت د توحيد كې او په بيان د وضاخت د ګواهۍ د (لا إله إلا الله) كې.

او د الله تعالى وينا ده: دوى چې چاته بلنه وركوي هغوى خو په خپله د خپل رب لور ته وسيله لټوي چې كوم يو (هغه ته) ورنږدې دى او د رحمت هيله يې كوي او له عذابه يې وېرېږي، په رښتيا ستا د رب عذاب د وېرې وړ دى. د الإسراء سورت: ٥٧ ايت.

او د هغه وينا: او كله چې ابراهيم عليه السلام خپل پلار او قوم ته وويل: پرته له شكه زه له هغه څه بېزاره يم چې تاسو يې لمانځئ.(٢٦). مګر هغه ذات چې زه يې پيدا كړى يم؛ نو هغه مې لارښوونه كوي.(٢٧) او هغه يې په خپل راتلونكي نسل كې يوه پاتېدونكې خبره وګرځوله تر څو هغوى (توحيد ته) بېرته راوګرځي. د الزخرف سورت: ٢٦– ٢٨ آيتونه.

او د هغه وينا: خپل عالمان او پيران يې مالكان د حل او د حرمت له الله پرته نيولي وو او همدارنګه د مريمې زوى مسيح (يې هم معبود نيولى) او حال داچې هغوى د يو الله له عبادت پرته په بل څه نه وو ګمارل شوي، له هغه پرته خو كوم بل معبود نشته، له هغه څه پاك دى چې هغوى يې ورسره شريكوي.

د التوبة سورت: ٣١ آيت.

او د هغه وينا: او ځيني كسان له الله پرته داسې سيالان نيسي چې د الله په څېر مينه ورسره كوي او چاچې ايمان راوړى هغوى خو د الله په مينه كې ډېركلك دي. د البقرة سورت: ١٦٥ آيت.

او په صحيح كې له نبي صلى الله عليه وسلم راغلي چې هغه فرمايلي: چاچې لا إله إلا الله وويل: او له الله پرته د نورو له لمانځلو يې نټه وكړه، د هغه مال او وينه حرام دي او حساب يې پر الله جل جلاله دى.

د دغې ژباړې شرحه وروستني بابونه دي.

په دغه كې لويې مسئلې دي او ترټولو مهمه يې ده:

د توحيد او شهادت تفسير او په څرګندو چارو سره يې بيان کړ.

يوه له هغو څخه داده: چې د الإسراء په ايت کې يې پر هغو مشرکانو رد بيان کړی چې نېکان رابولي، او دا خبره يې بيان کړې چې دا لوی شرک دی.

**او يوه مسئله دا ده:** چې د براءة په آيت کې دا خبره بيان شوه چې اهل کتابو خپل عالمان او عابدان(پيران) له الله پرته مالکان د حل او د حرمت وګرځول، او دا يې بيان کړ چې هغوی ته يوازې د يو الله د لمانځلو امر شوی و، سره له دې چې له ستونزې پرته تفسير يې د عالمانو او عابدانو په هغه څه کې پيروي ده چې ګناه نه وي، نه د هغوی لخوا لمانځل يې.

**او يوه مسئله:** کافرانو ته د خليل عليه السلام وينا ده: چې زه له هغه څه بېزار يم چې تاسو يې لمانځئ.(٢٦) مګر هغه ذات چې زه يې پيداکړی يم. چې خپل پالونکي يې له معبودانو څخه مستثنی کړل.

او الله پاک دا خبره بيان کړه چې دغه بېزاري او دغه دوستي د لا إله إلا الله کلمې د شهادت تفسير دی. او هغه يې په خپل راتلونکي نسل کې يوه پاتېدونکې خبره وګرځوله تر څو هغوی (توحيد ته) بېرته راوګرځي.

**او يوه مسئله داده:** چې د البقرة ايت د هغو کافرانو په اره دی چې الله د هغوی په اړه ويلي دي. او هغوی له دوزخ څخه وتونکي نه دي. دا خبره يې بيان کړه چې هغوی سيالانو سره د الله غوندې مينه کوي، چې دا پردې خبره دلالت کوي چې هغوی له الله سره لويه مينه لري او هغوی يې په اسلام کې داخل نه کړل؛ نو د هغه چا به څه حال وي چې له سيال سره تر الله زياته مينه لري.

او د هغه چا به څه حال وي چې يوازې له سيال سره مينه لري نه له الله سره؟

**او يوه مسئله:** د نبي صلی الله عليه وسلم وينا ده: چاچې لا إله إلا الله وويل: او له الله پرته د نورو له لمانځلو يې نټه وکړه، د هغه مال او وينه حرام دي او حساب يې پر الله جل جلاله دی.

او دغه تر ټولو لوی هغه څه دي چې د (لا إله إلا الله) معنا بيانوي، ځکه د هغې تلفظ يې د وينې او مال ساتونکی ونه بللو، او نه يې د هغې د معنا پېژندګلوي د هغې له لفظ سره، او نه پر دغه اقرار کول، او نه داخبره چې يوازې هغه الله را بولي چې شريک نه لري، بلکې مال او وينه يې ترهغه وخته نه حراميږي ترڅو يې له الله پرته د نورو له لمانځلو نته نه وي کړې، که شک وکړ يا يې توقف وکړ؛ نو مال او ينه يې نه حراميږي، نو دا څومره لويه او ستره مسئله ده؟

او دا څومره ښايسته بيان دی! څومره څرګند دی! او د جګړه کوونکي لپاره څومره پرېکوونکی دليل دی؟

باب دی په بيان د دې کې چې د حلقې، تار او دېته ورته شيانو اچول د ستونزې د له منځه وړلو يا مخنيوي په موخه هم شرک دی.

او د الله تعالی هغه وينا : ووايه: آيا هغه څه چې تاسو يې رابولئ كه الله ماته د كړاو رسول وغواړي هغوی يې لېرې كوونكي دي او يا هغه د لورېينې اراده راته ولري ايا هغوی يې د لورېينې بندوونكي دي، ووايه: الله راته بسنه كوي، پر همغه دې بروسه كوونكي بروسه وكړي. د الزمر سورت: ۳۸ ايت

له عمران بن حصين – رضي الله عنه څخه – روايت دی: چې نبي – صلى الله عليه وسلم – يو سړی وليد چې په لاس کې د ژېړو کړی وه؛ نو ورته يې ويل دا څه دي؟ هغه وويل: د کمزورۍ او درد(لرې کولو) لپاره ده؛ نو هغه وفرمايل: وېې باسه؛ ځکه هغه يوازې کمزوري در زياتوي، او كه ته مړ شې په داسې حال کې چې هغه درباندې وي؛ نو هيڅکله به بريالی نه شې. احمد په داسې سند سره روايت کړی چې ستونزه نه لري.

او هغه لره له عقبة بن عامر څخه مرفوع هم راغلی: چا چې تعويذ وځړاوه؛ نو الله دې نه ورته تماموي، او چا چې خر مهره وځوړوله الله دې سکون او ارام نه ورکوي. او په يو روايت کې دي: چا چې تعويذ وځړاوه؛ نو هغه شرک وکړ.

او ابن ابي حاتم له حذيفة څخه روايت کوي چې هغه يو سړی وليد چې په لاس کې يې د تبې تار و(بند)؛ نو هغه يې پرې کړ او د الله تعالی وينا يې تلاوت کړه: او ډېری يې پر الله باور نه لري مګر دا چې شرک کوونکي دي. د يوسف سورت: ۱۰٦ آيت.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د کړی، تار او دېته ورته نورو شيانو له کارولو سخت (منع کول) د دغې ډول موخې لپاره.

دويمه: دا چې صحابي که په داسې حال کې مړ شي چې هغه څه پرې وي، نه بريالی کيږي، نو په دې کې د صحابه وو پر وينا دا شاهد دی چې کوچنی شرک له لويو ګناهونو څخه دی.

دريیمه: بيشکه هغه يې په نا پوهی معذور ونه باله.

څلورمه: دا چې په دنيا کې هم ګټه نه رسوي، بلکې زيان رسوي د هغه - صلی الله عليه وسلم - د دغې وينا له مخې: چې هغه يوازې درد او کمزوري درزياتوي.

پنځمه: په سختۍ سره پر هغه چا رد؛ څوک چې دا ډول کار کوي.

شپږمه: داخبره په ډاګه کول چې څوک کوم څه راوځړوي همغه ته ورسپارل کيږي.

اوومه: دا خبره په ډاګه کول چې چا تعويذ را وځړاوه؛ نو هغه شرک وکړ.

اتمه: دا چې د تبې لپاره تار راځوړول هم له دغې قبيلې څخه دي(شرک دی).

نهمه: د حذيفه له لوري د آيت لوستل د دې خبرې دليل دی چې صحابه وو به ورروکی شرک کې پرهغو آيتونو استدلال کاوه کوم چې د غټ شرک په اړه وو، لکه ابن عباس چې د البقرې په آيت کې ذکر کړي.

لسمه: دا چې د بد نظرۍ لپاره د خرمهرې را ځړول هم له دې قبيلې څخه دي.

یوولسمه: د هغه چا لپاره ښېرا چې تعویذ را ځړوي چې الله دې کار نه بشپړوي، او څوک چې کونجکه وځوړوي، (د دې لپاره چې له درد نه پرې خلاص شي نو) الله دې له ( درد څخه نه) خلاصوي: معنا دا چې الله دې هغه لره آرام نه پرېږدي.



## باب دی په بیان د دمونو او تعویذونو کې:

په صحیح کې له ابو بشر الانصاري – رضي الله عنه – څخه روایت دی: چې هغه له نبي – صلی الله علیه وسلم – سره په یو سفر کې و، نو هغه یې د استازي په توګه ولیږه: چې د هیڅ اوښ په غاړه کې غاړه کۍ د لیندۍ پرې نږدي، او یا دا چې هره غاړه کۍ باید پرې کړل شي.

له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي چې ویل یې: بیشکه شرکي دمونه تعویزونه او د مینې جلبولو کوډې شرک دی. احمد او ابوداؤد روایت کړی.

تعویذونه: هغه څه دي چې له بد نظر څخه د ژغورلو په موخه پر ماشومانو ځوړندیږي، خو که چیرې ځوړند شوی شی له قرآن څخه وي نو ځینو سلفو جائز کړي، او ځینو نه دي جائز کړی، او منع یې ګرځولی دی، چې له هغوی څخه ابن مسعود رضي الله عنه هم دی.

رق: هغه دمونه دي چې عزائم ورته ویل کیږي، او کوم چې له شرک څخه خالي وي هغه دلیل ځني ځانګړي کړي دي، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بد نظرۍ او چیچل شوي په اړه اجازه ورکړې ده:

تولة: هغه څه دي چې خلک یې کوي او دا ګمان کوي چې له امله یې ښځه له میړه سره او میړه له ښځې سره مینه کوي:

او له عبدالله بن عکیم څخه مرفوع روایت دی: چا چې څه راوځړول همغه ته به وسپارل شي: احمد او ترمذي روایت کړی. دا حدیث امام احمد او بخاري روایت کړی:

امام احمد له رویفع څخه روایت کوي وایي: رسول الله – صلی الله علیه وسلم–ماته وفرمایل: اې رویفع! کېدای شي عمر دې اوږد شي؛ نو خلکو ته خبر ورکړه، چا چې خپله ږیره غوټه کړه( د کبر او یا مخنثو سره د تشبیه له وجې)، یا یې پر څارویو د بد نظرۍ د مخنیوي لپاره څه را وځړول، یا یې د څاروي پر پلیدۍ او یا هډوکي استنجاء وکړه؛ نو محمد صلی الله علیه و سلم له هغه څخه بیزاره دی:

او له سعيد بن جبير څخه روايت دی وايي: چا چې له يو انسان څخه تعويذ پرې کړ، دا داسې دی لکه د يو غلام آزادول. وکيع روايت کړی دی:

او هغه له ابراهيم څخه روايت کوي وايي: هغوی ټول تعويذونه بد ګڼل هغه که له قران څخه و او که له بل څه څخه:

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د دمونو او تعويذونو تفسير:

دويمه: د تولة کلمې تفسير:

دريیمه: دا درې واړه ټول پرته له استثناء شرک دی:

څلورمه: يقينا هغه دم چې له بد نظرۍ او د کوم څه چيچلو لپاره وي هغه له دغو څخه نه دي:

پنځمه: دا چې تعويذ که له قرآن څخه وي د هغو په اړه د علماوو تر منځ اختلاف دی چې آيا له دغه شرک څخه دی او که نه؟

شپږمه: دا چې پر څارويو د بد نظرۍ لپاره د ليندۍ هغه پړې راځړول له همدغه شرک څخه دي.

اوومه: د هغه چا سخته ويرونه چې د ليندي(يا کوم بل شی په انسان يا حيوان ځوړندوي د دي د پاره چې د نظره نه شي).

اتمه: د هغه چا فضيلت چې له يو انسان څخه تعويذ پرې کړي.

نهمه: دا چې د ابراهيم وينا له هغه څه سره په ټکر کې نه ده چې مخکې تېر شول، ځکه د هغه موخه د عبدالله بن مسعود ملګري دي

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د هغه څا کې چې په ونه، ډبره یا دېته ورته شیانو تبرک حاصلوي

او د الله تعالی په هغې وینا کې: ايا تاسې لات او عزی(بتان) لیدلي؟ (۱۹). او بل دریيم منات؟ (۲۰). آیا تاسو لره به زامن وي او هغه لره به لونې؟ (۲۱) دا خو یو ډېر بې انصافه وېش دی. (۲۲) دا پرته له یو څه نومونو بل څه نه دي(شرک هسې د مشرک د ژبې په سر خبره ده په خارج کې وجود نلري) چې تاسو او پلرونو مو ایښي دي، الله کوم دلیل پرې نه دی نازل کړی. هغوی پرته له ګمان او نفسي غوښتنې بل څه پسې نه دي روان او په رښتیا د هغوی د پالونکي لخوا لارښوونه ورغلې ده: د النجم سورت: ۱۹- ۲۳.

له ابو واقد لیثي څخه روایت دی وایي: موږ له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره حنین ته ووتلو، او موږ نوي مسلمانان شوي وو، د مشرکانو یوه د بېرې ونه وه چې هلته به ورسره کېناستل او پر هغې به یې خپلې وسلې راځړولې، هغې ته د ځړولو والا ویل کېده؛ نو موږ پر دغه د بېرې پر ونه تېرشو او موږ وویل: اې د الله رسوله! زموږ لپاره هم یوه د ځړولو والا وګرځوه لکه د هغوی لپاره چې د ځړولو والا ده، خو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله ترټولو لوی دی، پرته له شکه دا همغه لارې دي، پر هغه ذات مې دې قسم وي چې زما روح یې په لاس کې دی تاسو هغه څه وویل لکه بني اسرائیلو چې موسی علیه السلام ته وویل: زموږ لپاره یو معبود وګرځوه لکه د هغوی لپاره چې معبودان دي، هغه وویل تاسو یو داسې قوم یاست چې نه پوهېږئ. د الأعراف سوررت: ۱۳۸ آیت.

تاسو به هرومرو د هغو پر لارو ځئ چې له تاسو مخکې وو: ترمذي روایت کړی او صحیح یې بللی.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

**لومړی:** د النجم د آیت تفسیر.

**دویمه:** د هغه امر د بڼې پېژندنه چې هغوی یې غوښتنه کړې وه.

**درېیمه:** دا چې هغوی دا کار ونه کړ.

**څلورمه:** د هغوی داسې ګېدل چې پر دغه کار یې د خپل ګمان سره سم الله ته نږدې کېدل غوښتل چې ګواکې هغه یې خوښوي.

**پنځمه:** دا چې هغوی پر دغه نه پوهېدل؛ نو له هغوی پرته نور خو به په طریق اولی ناپوه وو.

**شپږمه:** دا چې هغوی لره داسې نېکۍ او د بخښنې ژمنه ده چې له هغوی پرته نورو ته نشته.

**اوومه:** داچې نبي – صلی الله علیه وسلم- هغوی معذور ونه ګڼل بلکې پر هغوی یې پردې وینا سره رد وکړ. الله اکبر، پرته له شکه هغه داسې لارې دي چې تاسو به هرومرو د مخکېنیو پیروي کوئ. نو په امر کې یې سختي پر دغو دریو سره وکړه.

**اتمه:** لوی امر چې هغه مقصود دی: هغه دا چې هغوی یې پردې خبر کړل چې د هغوی غوښتنه لکه د بني اسرائیلو د غوښتنې غوندې ده چې هغوی موسی علیه السلام ته وویل: زموږ لپاره یو معبود وګرځوه.

**نهمه:** دا چې د دغه نفي د (لا إله إلا الله) له معنا څخه ده سره لده چې هغه پیچلې او پر دوی پټه وه.

**لسمه:** دا چې هغه پر فتوا قسم وکړ، په داسې حال کې چې هغه یوازې د یو مصلحت له مخې قسم کوي.

**یوولسمه:** دا چې په شرک کې لوی او کوچنی شته، ځکه هغوی د دغه له امله مرتد نه شول.

**دولسمه:** د هغوی دا وینا ( چې موږ نوي مسلمانان شوي وو) په دې کې دې خبرې ته اشاره ده چې له هغوی پرته بل څوک له دغه څخه ناپوه نه و.

**دیارلسمه:** د تعجب پر مهال تکبیر پر خلاف د هغه چا چې بده یې نه ګڼي.

**څوارلسمه:** د ذرائعو (بدو چارو لارې) بندول.

**پنځلسمه:** د جاهلیت له خلکو سره له ورته والي څخه منع.

**شپاړسمه:** د تعلیم پر مهال غوسه.

اوولسمه: کلي قاعده د هغه – صلی الله علیه وسلم – د دغې وینا له مخې چې ( دغه لارې دي.

اتلسمه: دا چې دغه د نبوت له نښانو څخه یوه نښه ده ځکه څنګه یې چې خبر ورکړی و همغسې وشول.

نولسمه: دا چې پر کوم څه الله په قرآن کې د یهودو او نصاراو بدې بیان کړې ده همغه زموږ لپاره هم دي.

شلمه: دا چې د هغوی په اند دا ثابته ده چې د عباداتو بنسټ پر امر دی، نو په اره یې د قبر پر مسئلو تنبیه وشوه، کوم چې داخبره ده چې (رب دې څوک دی؟) هغه څرګنده ده، او کوم چې دا خبره ده چې (نبي دې څوک دی؟) په دې کې پر پټو خبر ورکول دي، او کوم چې دا خبره چې (دین دې څه دی؟) دا د هغوی د دغې وینا له مخې چې ویل یې:(زموږ لپاره یو معبود وکرځوه) تر پایه.

یوویشتمه: دا چې د اهل کتاب لاره داسې بده وه لکه د مشرکانو لاره.

دوه ویشتمه: دا چې له داسې باطل څخه منتقل شوی چې زړه یې پرې عادت شوی و دېر داډ یې په اړه نه وي چې په زړه کې یې دې له دغه عادت څخه څه پاتې وي؛ د هغوی د دغې وینا له مخې: چې موږ د کفر زمانې ته نېږدې وو؟


★★★★★★★★

## باب دی په بیان د حلاله کې غیرالله لپاره

او د الله تعالی وینا: وروایه: پرته له شکه زما لمونځ، زما قرباني، زما ژوند او زما مرګ یوازې د مخلوقاتو د پالونکي لپاره دي(١٦٢). هغه لره شریک نشته او پر همدغه ماته امر شوی او زه لومړنی د مسلمانانو یم.

د الأنعام سورت: ١٦٢– ١٦٣ آیتونه.

او د هغه د وینا په اړه: د خپل پالونکي لپاره دې لمونځ وکړه او قرباني وکړه. د الکوثر سورت: ٢ آیت.

له علي بن ابي طالب – رضي الله عنه – څخه روایت دی وایي: رسول الله – صلی الله علیه وسلم – څلور کلمې راته بیان کړې: پر هغه چا دې د الله لعنت وي چې له الله پرته د بل چا لپاره ذبح کوي، پر هغه چا دې د الله لعنت وي چې پر مورواوپلار لعنت کوي، د الله لعنت دې پر هغه چا وي چې بدعتي ته پناه ورکوي، د الله لعنت پر هغه چا وي چې د ځمکې مناره (پولې وهي) بدلوي. مسلم روایت کړی.

او له طارق بن شهاب څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یو سړی د یو مچ په اړه جنت ته ننوت او یوسړی د یو مچ په اړه دوزخ ته ننوت.

هغوی وویل: او دا څنګه اي د الله رسوله؟.

هغه وویل: دوه سړي پر یو قوم تېرېدل چې هغوی یو بت لرلو د هر چا لپاره اړینه وه چې یوڅه ورته قربان کړي.

نو هغوی له هغو دوو څخه یوه ته وویل: قرباني وکړه.

هغه وویل: زما سره هیڅ د قربانولو لپاره نشته.

هغوی ورته وویل: قرباني وکړه که څه هم د مچ وي، نو هغه هم مچ قرباني کړ(د دې بوت په نامه)، چې هغوی یې لار پرېښوده؛ نو هغه دوزخ ته ننوت.

او دویم ته یې وویل: قرباني وکړه.

هغه ووېل: له الله جل جلاله پرته بل چا ته زه قرباني کوونکی نه يم، نو هغوی يې سر پرې کړ، چې هغه جنت ته ننوت. احمد روايت کړی.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د {إِنَّ صَلاَتِي وَنُسُكِي} تفسير.

دويمه: د {فَصَلِّ لِرَبِّكَ وَانْحَرْ} تفسير.

درېيمه: پر هغه چا د لعنت پر ويلو پيل چې له الله پرته د بل چا لپاره ذبح کوي.

څلورمه: پر هغه چا لعنت ويل چې پر خپل مور او پلار لعنت وايي او له هغو څخه دا هم دي: چې ته د بل چا مور او پلار ته بد رد وايې؛ نو هغه ستا مور او پلار ته بد رد وايي.

پنځمه: پر هغه چا لعنت ويل چې بدعتي ته پناه ورکوي: او هغه داسې څوک دی چې يو نوي څه رامنځته کړي او په هغو کې د الله حق لازم ګڼي؛ نو داسې چا ته پناه وړي چې په دغه کې پناه ورکوي.

شپږمه: پر هغه چا لعنت ويل چې د ځمکې منارې بدلوي: دا هغه نښې نښانې دي چې په ځمکه کې ستا او ستا د ګاونډي د حق ترمنځ توپير راولي؛ نو ته په شاته مخته کولو سره هغه بدلوې.

اوومه: په عمومي ډول نا فرمانو خلکو باندې لعنت ويل او په يو معين شخص لعنت ويل په دې کې فرق دی.

اتمه: دغه لويه کيسه چې د مچ کيسه ده.

نهمه: دا چې هغه دوزخ ته ننوت د هغه مچ له امله چې د هغه قصد يې هم نه و کړی بلکې د هغوی له شره د خلاصون په موخه يې دا کار کړی و.

**لسمه:** د مؤمنانو په زړونو کې د شرک د اندازې پېژندنه، چې څنګه دغه تن پر وړلو صبر وکړ او د هغوی غوښتنه یې ونه منله سره لدې چې هغوی یوازې ظاهري عمل ترې وغوښت.

**یوولسمه:** هغه تن چې دوزخ ته ننوت هم مسلمان و، ځکه که چېرې کافر وای بیا یې داسې نه ویل: (چې د یومچ له امله دوزخ ته ننوت. (زه وایم دا ډېره قیمتي فایده ده)

**دولسمه:** په هغه کې د صحیح حدیث لپاره شاهد دی. چې جنت ستاسو هر یوه ته د هغه د څپلۍ له تسمې څخه ورنېږدې دی او دوزخ هم همدارنګه.

**دیارلسمه:** د دې خبرې پېژندنه چې د زړه عمل لوی مقصود دی آن د بتانو د لمانځونکو په اند هم.

باب دی په بیان د دې کې چې د الله لپاره به په هغه ځای کې ذبحه نه کیږي چېرې چې د غیرالله لپاره ذبحه کیږي.

او د الله تعالی وینا: هیڅکله په هغه کې مه دریږه، هغه جومات چې بنسټ یې له لومړۍ ورځې پر تقوا ایښودل شوی زیات د دې حقدار دی چې پکې ودرېږې، په هغه کې داسې سړي دي چې زیاته پاکي خوښوي او الله زیات پاکي کوونکي خوښوي. د التوبه سورت: ۱۰۸ آیت.

له ثابت بن الضحاک – رضي الله عنه – څخه روایت دی وایي: یو سړي نذر ومنود چې په بوانه نومي ځای کې به اوښ حلالوي؛ نو له نبي – صلی الله علیه وسلم – څخه یې پوښتنه وکړه، هغه وفرمایل: آیا هلته له بتانو کوم داسې بت شتون درلود چې په جاهلیت کې یې عبادت کېدلو.

هغوی وویل: نه.

هغه وفرمایل: آیا هلته د هغوی له اخترونو څخه کوم اختر و.

هغوی وویل: نه. بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: خپل نذر دې پوره کړه ځکه د الله په سرغړونه کې او په هغه څه کې د نذر پوره کول نشته چې انسان یې څښتن نه وي. ابوداود روایت کړی، او سند یې د هغوی دواړو (بخاري او مسلم) پر شرط برابر دی.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

لومړۍ: د الله د وینا {لاَ تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا} تفسیر:

دویمه: داچې سرغړونه کله په ځمکه کې اغېز کوي، همدارنګه پیروي.

درېیمه: د ستونزمنې مسئلې ردول څرګندې مسئلې ته ترڅو یې ستونزه له منځه ولاړه شي.

څلورمه: د مفتي لخوا تفصیل غوښتنه که دغه ته اړتیا پېښه شي.

پنځمه: دا چې د نذر لپاره د یوې توټې ځمکې په ځانګړې کولو ستونزه نشته کله چې خنډونه شتون ونلري.

شپږمه: له هغو ځخه منع کله چې هلته د جاهلیت له بتانو څخه کوم بت وي که څه هم له منځه تلو وروسته وي.

اوومه: له هغو څخه منع کله چې هلته د هغوی له اخترونو څخه کوم اختر وي، که څه هم له منځه تلو وروسته وي.

اتمه: دا چې پر دغه ډول ځایونو کې پر نذر کولو وفا روا نه ده، ځکه دا د ګناه نذر دی.

نهمه: له مشرکانو سره د هغوی په اخترونو کې له ورته والي څخه وېرول که څه یې هم د هغه قصد نه وي.

لسمه: په ګناه کې نذر نشته.

یوولسمه: په هغه څه کې نذر نشته چې انسان یې څښتن نه وي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې له الله پرته بل چا ته نذر شرک دی.

او د الله تعالی وینا: هغوی خپل نذر پوره کوي او له هغې ورځې داريږي چې شر يې خپور وور دی.

د الإنسان سورت: ۷ آیت.

د هغه د وینا په اړه: او څه مو چې لګولي دي او یا مو کوم نذر کړی؛ نو پرته له شکه الله پرې پوهیږي.

د البقرة سورت: ۲۷۰ آیت.

او په صحیح(البخاری) کې له عائشې - رضي الله عنها - څخه روایت دی چې رسول الله - صلی الله علیه وسلم - وفرمایل: چا چې دا نذر وکړ چې د الله پیروي به کوي؛ نو پیروي دې وکړي، او چا چې دا نذر وکړ چې د الله سرغړونه به کوي؛ نو سرغړونه يې دې نه کوي.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړۍ: د نذر د پوره کولو واجبوالی.

دویمه: کله چې دا خبره ثابته شوه چې نذر عبادت دی نو د بل چا په نامه نذر کول شرک دی.

دریيمه: دا چې د ګناه د نذر پوره کول روا ندي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې له الله پرته له بل چا څخه پناه غوښتل شرک دی

او دا وینا د الله تعالی: او دا چې د انسانانو څه کسانو به د پېریانو پر څه کسانو پورې پنا اخېسته؛ نو لا یې ناراميو ورزیاته کړه. د الجن سورت: ٦ آیت

او له خولة بنت حکیم – رضي الله عنها – څخه روایت دی وایي: له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه مې واورېدل چې فرمایل یې: څوک چې کوم ځای ته راشي؛ نو بیا ووایي: د الله پر بشپړو کلمو له هغه څه پناه غواړم چې پیدا کړي یې دي، هیڅ شی به زیان ورته ونه رسوي ترڅو له دغه ځایه نه وي تللی. مسلم روایت کړی.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د الجن سورت د آیت تفسیر.

دویمه: د هغه له شرک څخه کېدل.

درېیمه: پر دغه له حدیث څخه استدلال کول؛ ځکه علماء پرې استدلال کوي چې د الله کلمې مخلوق ندي، هغوی وایي: چې پر مخلوق پناه غوښتل شرک دی.

څلورمه: د دغې دعا فضیلت سره لدې چې لنډه ده.

پنځمه: دا چې پر یو شي دنیوي ګټه لکه د شر دفع کېدل او یا د ګټې ترلاسه کېدل حاصلیږي پردې دلالت نه کوي چې هغه دې شرک نه وي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې له الله پرته له بل چا څخه مرسته غوښتل او یا بل ځوک را بلل شرک دی.

او د الله تعالی وینا: او له الله پرته بل هغه څوک مه رابوله چې نه ګټه او نه ضرر درته رسولای شي، که دې دا وکړل؛ نو پرته له شکه ته له تېري کوونکو څخه یې. او که الله ضرر درته ورسوي؛ نو یوازې هغه یې لېرې کوونکی دی او که هغه د خیر اراده درته وکړي؛ نو د هغه د پېرزوینې څوک مخنیوونکی نشته، له بندګانو یې چې چاته وغواړي رسوي یې او هغه بخښونکی لورونکی دی. د یونس سورت: ۱۰٦- ۱۰۷ آیتونه

او د هغه وینا: د الله په وړاندې روزي ولټوئ او د هغه عبادت وکړئ او شکر یې وباسئ همغه ته ورګرځول کېږئ. د العنکبوت سورت: ۱۷ آیت

او د هغه وینا: او له هغه چا به زیات لاروړکی څوک وي چې له الله پرته هغه څوک رابولي چې تر قیامته پورې یې ورته قبلولای نه شي او هغوی د دوی د بلنې څخه ناخبره دي. او کله چې خلک را پورته کړل شي هغوی لره به دښمنان وي او د دوی په بلنه به انکار کوونکي وي. د الأحقاف سورت: ٥- ٦ آیتونه.

او د هغه وینا: هغه څوک چې سخت ارمن ته ځواب ورکوي کله یې چې را وبولي او ستونزه یې له منځه وړي او تاسو په ځمکه کې ځای ناستي ګرځوي آیا له هغه سره بل الله هم شته؟ د النمل سورت: ٦۲ آیت

طبراني په خپل سند روایت کوي: چې د نبي -صلی الله علیه وسلم- په زمانه کې یو منافق و چې مؤمنان یې ازارول؛ نو ځینو یې وویل: راځئ پر رسول الله -صلی الله علیه وسلم- له دغه منافق څخه مرسته وغواړو. نبي -صلی الله علیه وسلم- وفرمایل: د هغه پر وړاندې له ما مرسته نه غوښتل کیږي بلکې له الله مرسته غوښتل کیږي.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

**لومړۍ:** د دعا عطف پر مرسته غوښتلو د عام عطف پر خاص دی.

دويمه: د الله د دعګې وينا {وَلاَ تَدْعُ مِن دُونِ اللهِ مَا لاَ يَنفَعُكَ وَلاَ يَضُرُّكَ} تفسير.

درييمه: دا چې دغه لوی شرک دی.

څلورمه: دا چې ترټولو صالح تن که دغه کار د الله له رضاء پرته د بل چا لپاره ترسره کړ هغه به له تېرى کوونکو څخه وګرځي.

پنځمه: له هغه وروسته آيت تفسير.

شپږمه: داچې دغه کار په دنيا کې هم ګټه نلري سره لدې چې هغه کفر دی.

اوومه: د دریيم آيت تفسير.

اتمه: دا چې د روزی لټول يوازې له الله څخه مناسب دي لکه څنګه چې جنت له هغه څخه غوښتل کيږي.

نهمه: د څلورم آيت تفسير.

لسمه: دا چې تر هغه چا زيات لاروركی نشته چې له الله پرته بل څوک را بولي.

يوولسمه: دا چې هغه به د را بلونکي له را بللو بې خبره وي او له هغه به هيڅ خبر نلري.

دولسمه: دا چې دغه بلنه د رابلل شوي له رابلونکي سره د کينې او دښمنۍ لامل کيږي.

ديارلسمه: دغې بلنې ته د را بلل شوي عبادت ويلی شوی.

څوارلسمه: د دغه لمانځلو(راورسيږې را مدد شې) څخه د را بلل شوي نټه انکار.

پنځلسمه: دغه چارې د خلکو د لاروركۍ لامل کيږي.

شپاړسمه: د پنځم آيت تفسير.

اوولسمه: حيرانوونکی امر هغه د بت لمانځونکو دا اقرار دی چې سخت اړمن ته يوازې الله ځواب ورکوي او له همدې امله په سختيو کې هغه داسې رابولي چې يوازې هغه لره د دين ځانګړي کوونکي وي.

اتلسمه: د مصطفى -صلى الله عليه وسلم- د توحيد ملاتړ او له الله سره د ادب رعايتول.

**باب دی په بیان د الله تعالی دې وینا کې: آیا هغوی له الله سره هغه څه شریکوي چې هیڅ یې نه دي پیدا کړي او حال دا چې هغوی پیداکړل شوي دي. او نه هغوی لره د مرستې توان لري او نه د ځانونو مرسته کولای شي.** د الأعراف سورت: ۱۹۱- ۱۹۲ آیتونه.

او د هغه وینا: او کوم کسان چې تاسو يې له هغه پرته را بولئ د خرما او زړي ترمنځ يې د نري پوستکي (په اندازه) واک هم نلري. که يې را وبولئ ستاسو رابلنه نه اوري او که يې واوري قبلولای نه شي او د قیامت په ورځ به ستاسو په شرک به رد کوي او خبر به در نه کړي تاسو ته په شان د خبردار ذات.

د فاطر سورت: ۱۳- ۱٤ آیتونه.

او په صحیح کې له انس څخه روایت دی وايي: د احد په ورځ نبي -صلی الله علیه وسلم- پر سر زخمي شو، د مخې غاښونه يې مات شول؛ نو هغه وفرمایل: هغه قوم به څنګه بريالی شي چې خپل نبي پر سر زخمي کړ. نو دغه آیت نازل شو: تا لره په امر کې هیڅ هم نشته.

د آل عمران سورت: ۲۸ آیت.

او په دې اړه له ابن عمر -رضي الله عنهما- څخه روایت دی: چې هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي چې کله هغه خپل سر د سهار په لمانځه کې د وروستي رکعت له رکوع څخه را پورته کړ؛ نو ويې فرمایل: اې الله! په فلاني او فلاني لعنت وکړې. وروسته تر دې چې (سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ) يې وویل؛ نو الله دغه آیت را نازل کړ: تا لره په دغه امر کې هیڅ حق نشته.

د آل عمران سورت: ۲۸ آیت.

او په یو روایت کې دي: هغه صفوان بن امیه، سهیل بن عمرو او حارث بن هشام ته ښېراوې کولې نو دغه آیت را نازل شو. تا لره په دغه امر کې هیڅ حق نشته. د آل عمران سورت: ۲۸ آیت.

او په دې اړه له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی وايي: رسول الله –صلى الله عليه وسلم– هغه مهال ودرېده چې کله پر هغه دغه آيت را نازل شو: چې خپل نږدې خپلوان دې ووېروه. ( د الشعراء سورت: ٢١٤ آيت) نو ويې فرمايل: اې د قريشو ډلې – يا دېته ورته کلمه يې وويله – خپل ځانونه مو واخلئ، زه د الله پر وړاندې هيڅ نشم درسره کولای، ای د عبدالمطلب زوی عباسه! زه د الله پر وړاندې هيڅ نشم درسره کولای، د رسول الله –صلى الله عليه وسلم– عمه صفيې، زه د الله پر وړاندې هيڅ نشم درسره کولای، اې د محمد لورې فاطمې، څومره مال چې غواړې راڅخه يې وغواړه، خو زه د الله پر وړاندې هيڅ نشم درسره کولای.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د دوو آيتونو تفسير.

دويمه: .د احد کيسه.

درېيمه: د رسولانو د سردار ښېرا او تر شا يې د وليانو سرداران چې په لمانځه کې امين ويل وايي.

څلورمه: دا چې ښېرا د کافرانو پر خلاف وه.

پنځمه: دا چې هغوی داسې کړنې ترسره کړې چې دېری کافرانو نه وې ترسره کړې، له هغو څخه يو دا چې: خپل نبي يې پر سر زخمي کړ، او د هغوی لخوا د وژلو حرص يې، او يو دا چې: د وژل شوو مُثله کول سره لدې چې هغوی يې د کاکا زامن وو.

شپږمه: په دې اړه الله پر هغه دغه آيت را نازل کړ: تا لره په دغه امر کې هيڅ واک نشته.

اوومه: د هغه وينا: (او يا به د هغوی توبه قبوله کړي او يا به عذاب ورکړي) چې الله د هغوی توبه قبوله کړه؛ نو هغوی ايمان راوړ.

اتمه: د پېښو پر مهال د قنوت لوستل:

**نهمه:** چاته چې ښېرا کېدله په لمانځه کې د هغوی د نومونو او د هغوی د پلرونو د نومونو اخېستل.

**لسمه:** په قنوت کې د ټاکلې (معين) لعنت شتون.

**يوولسمه:** د نبي -صلى الله عليه وسلم- کيسه چې کله دغه آيت پرې نازل شو. او خپل نېږدې خپلوان دې ووېروه.

**دولسمه:** په دغه امر کې د نبي -صلى الله عليه وسلم- جديت تردې چې هغه څه يې وکړل چې له امله يې لېونتوب ورته منسوب شو، نو که اوس يې کوم مسلمان وکړي هم همداسې به وي.

**ديارلسمه:** د هغه وينا لېرې او نېږدې ته: چې زه تا ته د الله پر وړاندې هيڅ کټه نشم رسولای. آن تردې چې ويې فرمايل: اې د محمد لورې فاطمې! زه تا ته د الله پر وړاندې هيڅ کټه نشم رسولای.

کله يې چې دا خبره په ډاګه کړه په داسې حال کې چې هغه د رسولانو سردار و، چې هغه د ټولو مخلوقاتو سردارۍ مېرمنې ته څه کټه نشي رسولای، او انسان هم پردې باور لري چې هغه يوازې حق وايي، بيا يې په هغه څه کې فکر وکړ چې نن سبا د خاصو خلکو په زړونو کې راګرځي؛ نو هغه ته د توحيد پرېښودل او د دين (غربت) نا اشنا والی په ډاګه شول.

**باب دی په بيان د الله تعالی د وينا کي چي فرمايي: ترديي چي کله يې له زړونو وېره لېرې شي، هغوی وايي پالونکي مو څه وويل: هغوی وايي: حق او همغه لوړ او لوی دی.**

د سبا سورت: ۲۳ آيت.

په صحيح کې ابو هريره -رضي الله عنه- له نبي -صلی الله عليه وسلم- څخه روايت کوي چې هغه وفرمايل: کله چې الله په اسمان کې د کوم کار پرېکړه وکړي؛ نو پرېښتې د هغه وينا ته داسې په عاجزۍ وزرې ووهي، لکه پر پاکو او خويه ډبرو چې يو ځنځير وهل کيږي، دغه پر هغوی پلې کوي ترديي چې له زړونو يې وېره لېرې شي، بيا هغوی وايي: پالونکي مو څه وويل؟ هغوی وايي: حق او هغه لوړ او لوی دی، نو يو په پټه غوږ نيوونکی او دا په غلا غوږ نيوونکی(شيطانان) يې واوري داسې چې ځيني يې د ځينو له پاسه وي، سفيان په خپل لاس هغه حالت بيان کړ، داسې چې هغه يې په څنګ کړ او ګوتې يې سره پرانيستې، نو کله چې يو يې کومه خبره واوري هغه يې لاندې والا ته ورسوي، بيا يې هغه تر ځان لاندې بل ته ورسوي، ترديي چې د کوډګر يا غيب ويونکي خولې ته ورسيږي، بيا يې کله اور غورځوونکی ستوری مخکې تر رسولو وموي او کله بيا د هغه ترموندلو مخکې يې ورسوي، چې بيا سل درواغ ورسره يوځای کړي، نو ويل کيږي: آيا نن يې موږ ته داسې او داسې ونه ويل؟ نو د دغې له آسمانه اورېدلې کلمې تصديق کيږي.

له نواس بن سمعان -رضي الله عنه- څخه روايت دی هغه وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: کله چې الله د کوم کار په اړه د وحي کولو اراده وکړي، پر هغه وحي خبرې وکړي چې له امله يې اسمانونه په لړزه شي، او يا يې وويل: چې د الله له وېرې سخت ورپيږي، کله چې دغه د آسمان خلک واوري پرمخې ولويږي او الله ته په سجده شي، نو ترټولو لومړی جبرئيل سر پورته کوي، چې الله د هغې وحي په اړه خبرې ورسره کوي چې اراده يې کړې ده، بيا جبرئيل پر پرېښتو تېريږي، کله چې پر هر اسمان تېريږي پرېښتې ترې پوښتي زموږ پالونکي څه وويل اې جبرئيله!

نو هغه ورته وايي: هغه حق وويل، او هغه لوړ او لوی دی، نو هغوی ټول هغه څه وايي کوم چې جبرئيل وويل، بيا جبرئيل وحي هغه ځای ته رسوي چېرې چې الله جل جلاله امر ورته کړی دی.

پە دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د آيت تفسير.

دويمه: د شرک پر ابطال حجت په ځانګړي ډول هغه څوک چې د نېکانو پورې تړاو لري، او دا هغه ايت دی چې ويل کيږي: له زړه څخه د شرک د ونې رکونه پرې کوي.

درييمه: د الله تعالی د دغې وينا تفسير: هغوی وايي: حق يې وويل: او هغه لوړ او لوی دی.

څلورمه: د دغه په اړه د هغوی د پوښتنې لامل.

پنځمه: دا چې جبرئيل له دغه وروسته په خپله دې وينا سره هغوی ته ځواب ورکوي: چې هغه داسې او داسې وويل.

شپږمه: د دې خبرې يادونه چې ترټولو لومړی جبرئيل سر راپورته کوي.

اوومه: دا چې د آسمانونو ټولو خلکو ته وايي ځکه هغوی يې پوښتي.

اتمه: دا چې د اسمانونو ټول خلک بې هوښه کيږي.

نهمه: د الله د وينا له امله د اسمانونو په لړزه کېدل.

لسمه: دا چې جبرئيل هغه څوک دی چې وحې هغه ځای ته رسوي چېرې الله امر ورته کړی دی.

يوولسمه: د شيطانانو په پټه د غوږ نيولو يادونه.

دولسمه: د هغوی يو پر بل د سپرېدلو د حالت بيان.

**دیارلسمه:** د اورغورځوونکو ستورو لېږل.

**څوارلسمه:** دا چې کله یې ستوري مخکې د خبرې تر رسولو راګیر کړي.

او کله هغه خپل انسان ملګري ته خبره رسوي مخکې تردې چې ستوری یې وموي.

**پنځلسمه:** دا چې غیب ویونکی هم ځینې وخت رښتیا وایي.

**شپاړسمه:** دا چې هغه سل درواغ ورسره وایي.

**اوولسمه:** دا چې د هغه د درواغو تصدیق یوازې د دغې کلمې له امله کیږي چې له اسمان څخه اورېدل شوې ده.

**اتلسمه:** د نفسونو لخوا د باطل منل: چې څنګه یوه خبره تینګه نیسي او سلو ته پاملرنه نه کوي.

**نولسمه:** د هغوی داسې کېدل چې ځینې یې له ځینو خبره اخلي.

دغه کلمه چې هغوی یې یادوي او استدلال پرې کوي.

**شلمه:** د اشعریه(د صفاتو نه منوونکي) پر خلاف د صفتونو ثابتول.

**یوویشتمه:** دا خبره په ډاګه کول چې دغه لړزه او بې هوښي.

د الله جل جلاله له وېرې څخه وي.

**دوه ویشتمه:** دا چې هغوی الله ته په سجده لوېږي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د شفاعت (سپارښتنه) کې

او د الله جل جلاله د وینا په بیان کې: او هغه خلک پرې ودار کړه چې له دې څخه وېرېږي چې خپل پالونکي ته به را پاخول کیږي، هغوی لره به له هغه پرته نه دوست وي او نه سپارښت کوونکی؛ د دې د پاره چې هغوی ووېرېږي. د الأنعام سورت: ٥١ آیت

او دا قول یې:ووایه خاص د الله په اختیار کې دی سفارش ټول. د الزمر سورت: ٤٤ آیت.

او دا قول یې: څوک دی چې د هغه له اجازې پرته د هغه پر وړاندې سپارښتنه وکړي. د البقرة سورت: ٢٥٥ آیت.

او دا قول یې: او په اسمانونو کې څومره پرېښتي دي چې د هغوی سپارښتنه هیڅ ګټه نشي رسولای مګر وروسته تردې چې الله چاته وغواړي او ترې راضي وي اجازه ورکړي. د النجم سورت: ٢٦ آیت.

او دا قول یې: ووایه: راوبولئ کوم چې تاسې له الله پرته ( معبودان) انګېرلي، هغوی خو د یوې ذرې په اندازه څه په واك کې نلري، نه په اسمانونو کې او نه په ځمکه کې او نه یې په دې دواړو کې څه برخه شته او نه له هغوی څوك د الله مرستندوی دی او د هغه پر وړاندې سپارښتنه هم چاته ګټه نه رسوي پرته له هغه چې اجازه یې ورته کړې وي.

د سبا سورت: ٢٢- ٢٣ آیتونه.

ابوالعباس وايي: الله له ځان پرته له نورو ټول هغه څه نفي کړل چې مشرکان تر هغه تړاو لري، دا خبره یې نفي کړه چې له هغه پرته دې د بل چا پاچایي یا کومه برخه وي، یا د الله مرستندوی وي او یوازې سپارښتنه پاتې وه؛ نو هغه یې هم داسې بیان کړه چې هغه یوازې هغه مهال ګټه رسوي چې چاته پالونکي اجازه ورکړې وي، لکه چې فرمايي: او پرته له هغه چا چې د الله ورته رضا وي، بل د هیچا سپارښتنه نه کوي. د الأنبیاء سورت: ٢٨ آیت

نو دا هغه سپارښتنه ده چې مشرکان یې ګومان کوي، هغه د قیامت په ورځ نفي کړل شوې ده، لکه قرآن چې نفي کړې او نبي صلی الله علیه وسلم خبر ورکړی دی.

چې هغه به راشي او خپل پالونکي ته به سجده وکړي او د هغه ستاینه به وکړي - لومړی به سپارښتنه نه پیل کیږي - بیا به ورته وویل شي: سر دې پورته کړه او ووایه اوریدل کیږي، وغواړه درکول کیږي او سپارښتنه وکړه سپارښتنه دې منل کیږي.

ابوهریره ورته وویل: د کومو نېکبختو خلکو لپاره به ستا سپارښتنه وي؟ هغه وفرمایل: چا چې د زړه له اخلاصه (لا إله إلا الله ) ویلي وي.

نو دغه سپارښتنه به د الله په امر د اخلاص والا لپاره وي او د هغه چا لپاره به نه وي چې له الله سره یې شریک نیولی وي.

او حقیقت یې دادی چې الله پاک همغه ذات دی چې پر اخلاص والا پېرزوینه کوي، چې هغوی لره به د هغه چا په دعا بخښنه کوي چاته یې چې د سپارښتنې اجازه کړې وي ترڅو د هغه درناوی وکړي، او ستایل شوی مقام ترلاسه کړي.

نو د کومې سپارښتنې چې قرآن نفي کړې له هغو څخه موخه هغه ده چې په هغې کې شرک وي، له همدې امله یې په خپل امر په یوشمېر ځایونو کې سپارښتنه ثابته کړه، او نبي -صلی الله علیه وسلم- دا خبره هم بیان کړې چې هغه سپارښتنه به یوازې د توحید او اخلاص والا لپاره وي. خبره یې پای ته ورسېده.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

**لومړی:** د آیتونو تفسیر.

**دویمه:** د نفي شوې سپارښتنې بیان.

**دریيمه:** د ثابت کړل شوې سپارښتنې بیان

**څلورمه:** د لویې سپارښتنې یادونه.

او دا چې هغه محمود (ستایل شوی) مقام (ځای) دی.

**پنځمه:** د هغه څه بیان چې نبي - صلى الله عليه وسلم- يې ترسره کوي هغه دا چې پیل به په سپارښتنه نه کوي بلکې سجده به کوي.

کله چې الله اجازه ورکړي، سپارښتنه به وکړي.

**شپږمه:** دا چې څوک به د هغې سپارښتنې په اړه نېکبخته وي؟

**اوومه:** دا چې هغه به د هغه چا لپاره نه وي چې له الله سره يې شرک کړی وي.

**اتمه:** د هغې د حقيقت بيان.

**باب دی په بیان د الله تعالی د وینا کې: پرته له شکه ته هغه څوک په سمه لیار نشې روانولای چې خوښوې یې، بلکې الله چې چا ته وغواړي په سمه لیار یې روانوي، او هغه پر لار موندونکو ښه پوه دی.**

د القصص سورت: ٥٦ آیت.

په صحیح کې ابن مسیب له خپل پلاره روایت کوي وایي: کله چې ابو طالب ته مرګ نېږدې شو، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته راغی، په داسې حال کې چې له هغه سره ابن ابي امیه او ابوجهل هم وو؛ نو ورته ویې ویل: اې کاکا! د (لا إله إلا الله) کلمه ووایه: د الله په وړاندې به ستا لپاره دلیل پرې وایم.

نو هغوی دواړو ورته وویل: آیا ته د عبدالمطلب له ملت څخه اوړې.

چې نبي -صلی الله علیه وسلم- بیا ورته وویل، هغوی دواړو هم خپله خبره تکرار کړه؛ چې په وروستي وخت هغه وویل: چې د عبدالمطلب پر ملت دی، او له دې څخه یې نټه وکړه چې (لا إله إلا الله) کلمه ووایي.

نو نبي صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زه به هرومرو ستا لپاره تر هغه بخښنه غواړم ترڅو له تا څخه منع شوی نه یم.

چې الله جل جلاله دغه آیت نازل کړ. د نبي او هغو کسانو لپاره چې ایمان یې راوړی په کار ندي چې د مشرکانو لپاره بخښنه وغواړي که څه هم خپلوان یې وي وروسته تردې چې د هغوی لپاره څرګنده شوه چې هغوی دوزخیان دي. د التوبة سورت: ١١٣ آیت.

او د ابوطالب په اړه دغه آیت نازل شو: پرته له شکه ته هغه څوک په سمه لیار نه شې روانولای چې ته ورسره مینه لرې لیکن الله یې په سمه لیار روانوي چا ته یې چې خوښه شي. د القصص سورت: ٥٦ آیت.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

**لومړی:** د الله د دغې وينا {إِنَّكَ لاَ تَهْدِي مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَهْدِي مَن يَشَاءُ} تفسير.

**دويمه:** د الله د دغې وينا {مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَن يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ} تفسير.

**دريیمه:** او لويه مسئله د هغه د دغې وينا تفسير دی چې ته (لا اله الا الله) کلمه ووايه، پر خلاف د هغه څه چې د پوهې څښتنان يې دعوی کوي.

**څلورمه:** پرته له شکه ابوجهل او د هغه ملګري د نبي صلى الله عليه وسلم پر موخه پوهېدل کله يې چې سړي ته دا وويل: (لا اله الا الله) کلمه ووايه، الله دې هغه خراب کړي ابوجهل د اسلام پر اصل زيات ترې پوه و.

**پنځمه:** د نبي صلى الله عليه وسلم هڅه او کوښښ د خپل تره په اسلام کې.

**شپږمه:** پر هغه چا رد چې د عبدالمطلب او د هغه د اسلافو د اسلام ګومان کوي.

**اوومه:** د نبي صلى الله عليه وسلم د هغه لپاره بخښنه غوښتل چې هغه لره بخښنه ونه شوه، بلکې هغه لدې څخه منع کړل شو.

**اتمه:** د بدو ملګرو زيان د انسان لپاره.

**نهمه:** د اسلافو او لويانو د درناوي زيان.

**لسمه:** پر دغه سره د ابوجهل د استدلال له امله په دغه کې د مبطلينو لپاره شبهه.

**يوولسمه:** دا شاهد چې په اعمالو کې وروستی د باور وړ دی، ځکه که يې ويلې وای، ګټه به يې ورته رسولې وای.

**دولسمه:** د لارورکو په زړونو کې د دغې شبهې په لوی والي کې غورکول، ځکه په دغه کيسه کې دي، چې هغوی يوازې پر همغې استدلال کولو سره لدې چې نبي صلى الله عليه وسلم توله هڅه کوله او خپله خبره يې تکراروله، د هغوی په وړاندې د هغې د لوی والي او څرګندوالي له امله يې پر هغې بسنه وکړه.


★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې د آدم د اولاد د کفر او د خپل دین د پرېښودلو لامل د نېکانو په اړه غلو (له بریده اوښتل) دي

او د الله جل جلاله وینا: اې د کتاب څښتنانو! په دین کې غلو مه کوئ او پر الله له حق پرته بل څه مه وایاست، پرته له شکه عیسی مسیح د مریمې زوی د الله استازی او هغه کلمه یې ده چې مریم ته یې اچولې او د هغه له لوري روح دی.

د النساء سورت: ۱۷۱ ایت.

په صحیح کې د ابن عباس رضي الله عنهما څخه د الله تعالی د وینا په اړه راغلي. او هغوی وویل: خپل معبودان مو مه پرېږدئ او ود، سواع، یغوث، یعوق او نسر مه پرېږدئ. د نوح سورت: ۲۳ ایت.

وایي: دغه د نوح له قوم څخه د نېکو کسانو نومونه وو، کله چې وفات شول، شیطان د هغوی قوم ته په زړه کې دا خبره ورواچوله چې د هغوی د ناستې په ځایونو کې نښانونه ولګوئ او د هغوی پر نومونو یې ونوموئ، چې هغوی هم همداسې وکړل، او هغه نه لمانځل کېدل تر دې چې دوی وفات شول او پوهه هېره شوه؛ نو بیا یې عبادت وکړای شو.

او ابن قیم وایي: یوشمېرسلفو ویلي: کله چې هغوی وفات شول، نور خلک یې پر قبرونو تم شول، بیا یې مجسمې ورته جوړې کړې، بیا چې څه موده تېره شوه، نو د هغوی عبادت یې پیل کړ.

او له عمر څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ما له بریده زیات مه ستایئ لکه نصاراو چې د مریمې زوی وستایلو، زه یو بنده یم، نو ووایاست: د الله بنده او د هغه رسول دی. صحیحینو روایت کړی.

او وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له غُلو (بریده اوښتو) څخه ډډه وکړئ، ځکه له تاسو مخکېني خلک غُلو تباه کړل.

او د مسلم په روایت کې له ابن مسعود څخه راغلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: په ستاینه کې تکلف کوونکي تباه شول. درې ځلې یې وویل.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

**لومړۍ:** داچې څوک پر دغه باب او له هغه وروسته دوو بابونو پوه شو؛ نو د اسلام غربت (نا اشنا والی) به ورته څرګند شي.

او د الله قدرت او د هغه له لوري د زړونو بدلول به عجیب ووېني.

**دویمه:** د لومړني شرک پېژندنه چې هغه په څمکه کې پېښ شو هغه د نېکانو په شبهې سره و.(دنیکانو په اړه شیطان خلکو ته شبهې واچولې)

**درېیمه:** د لومړني هغه څه پېژندنه چې د نبیانو دین پرې بدل کړل شو، او هغه څه چې د دغه لامل شول، سره له دې پېژندنې چې هغوی الله استولې و.

**څلورمه:** د بدعتونو منل سره له دې چې شریعتونه او فطرت یې ردوي.

**پنځمه:** د دغه ټولو لامل د حق له باطل سره ګډول و.

نو لومړی: د نېکانو سره مینه.

**دویم:** د ځینو د پوهې او دین د څښتنانو لخوا داسې څه کول چې د خیر اراده یې ترې کړې وه؛ خو وروستنیو یې دا ګومان وکړ چې هغوی له دې پرته د بل څه اراده لرله.

**شپږمه:** د نوح سورت د آیت تفسیر

**اوومه:** د انسان مزاج خوی چې حق یې په زړه کې کمېږي او باطل زیاتیږي.

**اتمه:** په دې کې د هغه څه شاهد دی چې له سلفو څخه منقول دي چې بدعتونه د کفر لامل دي.

**نهمه:** د شیطان پر هغه څه پېژندنه چې بدعتونو ته سرې مایلوي که څه هم د ترسره کوونکي موخه ښه وي.

**لسمه:** د کلي قاعدې پېژندنه هغه دا چې له غُلو او هغه څه څخه چې غُلو ته سړی کشوي منع کول.

**يوولسمه:** پر قبر د بنې کرنې په موخه د پاتې کېدلو زيان.

**دولسمه:** د مجسمو څخه د منعې پېژندنه او د هغو د لېرې کولو حکمت.

**ديارلسمه:** د دغې کيسې د شان د لوی والي او هغې ته د اړتيا شديدوالی له هغې څخه د بې پروايۍ سربېره.

**څوارلسمه:** او هغه ډېره حيرانوونکې او ډېره حيرانوونکې ده - چې هغوی د تفسير او حديثو په کتابونو کې لوستې ده، د هغوی له لوري د وينا پر معنا پوهېدل، او د الله حايل کيدل د هغوی او د زړونو ترمنينځ يې تردې چې باور يې وکړ چې د نوح د قوم کړنه ترټولو غوره عبادت دی، او دا باور يې وکړ، چې له څه څخه چې الله او د هغه استازي منع کړې هغه داسې کفر دی چې د وينې او مال روا کوونکی دی.

**پنځلسمه:** دا خبره څرګندول چې هغوی يوازې د سپاربنتنې اراده لرله.

**شپاړسمه:** د هغوی دا ګومان چې کومو علماوو انځورونه جوړ کړل هغوی همدغه اراده لرله.

**اوولسمه:** د هغه په وينا کې لوی بيان: (چې زما له بريده زياته ستاينه مه کوئ لکه نصاراو چې د مريمې د زوی وکړه) نو هغه صلی الله عليه وسلم څرګنده بلنه وکړه.

**اتلسمه:** موږ ته د هغه نصيحت د تکلف کوونکو په تباه کېدو سره.

**نولسمه:** دا په ډاګه کول چې تر هغه د هغو نېکانو عبادت نه کېده، تردې چې پوهه هېره شوه، نو په دې کې د هغه د شتون د قدر او نشتون د ضرر پېژندنه ده.

**شلمه:** دا چې د پوهې د نشتون لامل د پوهانو مړينه ده.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې څوک د الله عبادت د نیک سړي له قبر سره کوي، د هغه په اړه څومره سختې راغلې؛ نو د هغه چا به څه حال وي چې په خپله د هغه نیک سړي عبادت کوي!؟.

په صحيح كې له عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې ام سلمه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخكې د نصاراوو د عبادت ځای يادونه وكړه چې د حبشې په ځمكه كې يې ليدلې وه او په هغو كې چې كوم انځورونه وو؛ نو هغه وفرمايل: دوی داسې خلک دي كله چې يو نيک سړی يا نيک بنده پكې مړ شي، د هغه پر قبر جومات جوړ كړي او په هغو كې دغه انځورونه رسم كړي، دوی د الله په وړاندې تر ټولو بد خلک دي.

نو دغو خلكو د دوو فتنو ترمنځ يوځای والی كړی: د قبرونو فتنه، او د تصويرونو فتنه.

او هغوی دواړو لره له هغې څخه روايت دی چې وېې ويل: كله چې پر رسول الله صلى الله وحي نازله شوه پر مخ يې څادر واچولو، كله چې ترې ختمه شوه مخ يې لوڅ كړ؛ نو وېې فرمايل: هغه همداسې ده. الله پر يهودو او نصاراوو لعنت كړی چې د خپلو نبيانو قبرونه يې جوماتونه وګرځول. هغه له دې خلک وېرول چې يهودو او نصاراو كړي وو، كه يې داسې نه وای كړي قبر به يې ښكاره وای، د دې علاوه هغه له دې هم وېره لرله چې قبر يې جومات ونه ګرځول شي. هغوی دواړو(بخاري او مسلم) روايت كړی دی.

د مسلم په روايت كې له جندب بن عبدالله څخه راغلي وايي: ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه تر وفات پنځه ورځې مخكې واورېدل چې هغه ويل: زه الله ته لدې خپله بېزاري وړاندې كوم چې له تاسو څخه دې زما كوم دوست وي، ځكه الله زه خپل دوست ګرځولی يم، لكه څنګه چې يې ابراهيم دوست ګرځولی، كه ما له خپل امت څخه څوک دوست نيولی؛ نو ابوبكر به مې دوست ګرځولی وای، خبر اوسئ څوک چې تر تاسو مخكې وو هغوی د خپلو نبيانو قبرونه جوماتونه وګرځول، خبر اوسئ له قبرونو جوماتونه مه جوړوئ؛ ځكه ما له دغه څخه تاسې منع كړي ياست.

له دې څخه يې د خپل ژوند په وروستيو كې نهي وكړه، بيا يې لعنت پرې ووېلو، په داسې حال كې چې هغه د همدې په سياق كې و، چې چا داسې كړي و، او له هغو سره لمونځ كول له

همدې دلې څخه دي که څه هم جومات پرې جوړ نه کړل شي. او دا د هغې د وينا معنا ده: (چې هغه ويره لرله چې قبر يې جومات ونه ګرځول شي). څکه صحابه و د هغه د قبر شاوخوا جومات نه جوړولو، او په هر ځای کې چې د لمانځه اراده وکړل شي؛ نو هغه جومات وګرځول شو، بلکې په هرځای کې چې لمونځ کيږي هغه ته جومات ويل کيږي، لکه نبي صلى الله عليه وسلم چې فرمايلي دي: ماته ځمکه جومات او پاکوونکې(طهور په زور د ط سره هغه شی ته وايي چې پاکوونکی وي لکه اوبه او د تيمم د پاره خاوره) ګرځول شوې ده.

او احمد په جيد سند سره له ابن مسعود رضي الله څخه مرفوع روايت کوي. چې تر ټولو بد خلک هغه دي چې قيامت راشي او هغوی ژوندي وي او هغه خلک چې له قبرونو څخه جوماتونه جوړوي.

او ابوحاتم او ابن حبان په خپل صحيح کې همداسې روايت کړی.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

**لومړۍ:** کوم څه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغه چا په اړه بيان کړل چې د نهک سړي له قبر سره جومات جوړوي چې د الله عبادت پکې وشي، که څه هم د ترسره کوونکي نيت سم وي.

**دويمه:** له مجسمو څخه منع کول او په دې اړه سختې کول.

**دريمه:** د نبي صلى الله عليه وسلم په دې اړه په مبالغه کې عبرت، چې څنګه يې لومړی هغوی ته دغه بيان کړل، بيا پنځه ورځې مخکې تر خپل وفات، څه يې چې ويل هغه يې وويل، بيا چې د هغه په سياق کې و پر هغه څه يې بسنه ونه کړه چې مخکې تېر شوي و.

**څلورمه:** له خپل قبر سره د داسې کړنې له ترسره کولو څخه منع کول مخکې تردې چې قبر يې رامنځته شي.

**پنځمه:** دا چې د يهودو او نصاراو د خپلو نبيانو د قبرونو په اړه تګلاره دا وه.

شپږمه: د هغه له لوري په دې اړه پر هغوی لعنت.

اوومه: دا چې د نبي صلی الله علیه وسلم موخه د هغه له قبر څخه زموږ وېرول و.

اتمه: د خپل قبر د نه ښکاره کولو لامل

نهمه: د هغه له لوري د جومات کرځولو معنا.

لسمه: دا چې د هغه چا ترمنځ چې قبرونه یې جوماتونه کرځولي یوځای کول.

او هغه چا تر منځ چې قیامت پرې راشي؛ نو د شرک ذریعه یې یاده کړه مخکې تر رامنځته کېدلو د هغه له پای ته رسولو سره.

یوولسمه: د هغه له لوري په خپله خطبه کې له وفات پنځه ورځې مخکې یادونه، پر دوو هغو ډلو رد دی چې هغوی تر ټولو بد بدعتیان دي.

بلکې ځینو سلفو هغوی له دوه اویا ډلو څخه ایستلي دي چې هغوی روافض او جهمیه دي، او د رافضه و له امله شرک او د قبرونو عبادت پېښ شو، او هغوی لومړني هغه څوک وو چې قبرونه یې پرې جوړ کړل.

دولسمه: رسول الله صلی الله علیه وسلم پر سخت روح اخستلو وازمایل شو.

دیارلسمه: هغه دوستۍ چې پرې عرتمند کړای شوی دی.

څوارلسمه: دا په ډاګه کول چې دوستي(خلة) له مینې(محبة) لوړه ده

پنځلسمه: دا په ډاګه کول چې صدیق (ابوبکر الصدیق ) په صحابو کې غوره دی.

شپاړسمه: د هغه خلافت ته اشاره.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د هغه غُلو (له بریده اوښتلو) کې چې د نېکانو د قبرونو په اړه راغلی او داسې بوتان ترې جوړوي چې له الله پرته لمانځل کېږي.

مالک په موطا کې روایت کوي: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: اې الله! ته زما قبر بُت مه کرځوې چې عبادت یې کیږي، د الله غُصه پر هغه قوم سخته شوه چې د نبیانو قبرونه یې جوماتونه جوړ کړل.

ابن جریر په خپل سند له سفیان، هغه له منصور او هغه له مجاهد څخه روایت کوي. آیا؛ لات او عزی مو ونه لیدل. د النجم سورت: ۱۹ آیت.

وايي: هغه به دوی لره اوړه په غوړو کې ېخول؛ نو کله چې مړ شو، هغوی یې پر قبر ورغوند شول(منجاوران).

او همدارنګه ابوجوزاء له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کوي، چې هغه به د حاجیانو لپاره اوړه په غوړو کې ېخول(د هغوی د اکرام د پاره).

او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبرونو پر زیارت کوونکو(مېرمنو)، او هغو کسانو لعنت ویلی چې جوماتونه پرې جوړوي او څراغونه پرې روښانه کوي.

د سنن والا روایت کړی دی.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د بُتانو تفسیر.

دویمه: د عبادت تفسیر.

درییمه: رسول الله صلی الله علیه وسلم یوازې له هغه څه پناه غوښتې ده چې له رامنځته کېدو یې وېره لرله.

څلورمه: د نبیانو پر قبرونو د جوماتونو جوړول یې له دغه سره پرتله کړل.

پنځمه: د الله له لوري د سختې غصې یادونه.

شپږمه: او تر ټولو مهمه یې دا ده: چې د بتانو تر ټولو لوی بُت د لات د عبادت صفت پېژندنه یې وکړه.

اوومه: د دې خبرې پېژندنه چې هغه د نېک سړي قبر و.

اتمه: دا چې هغه د قبر والا نوم و او د نوم اېښودنې د معنا یادونه.

نهمه: د هغه له لوري د قبرونو پر زیارت کوونکو(مېرمنو) لعنت ویل.

لسمه: پر هغه چا لعنت ویل چې څراغونه پرې لګوي.

★★★★★★★★

## دا باب دی د مصطفی - صلی الله علیه وسلم - لخوا د توحید د ملاتړ او د هرې هغې لارې بندولو په اړه چې شرک ته رسوونکې ده.

او د الله تعالی وینا: (دادی) تاسو ته یو داسې رسول راغی چې خپله له همدا تاسو څخه دی، څه چې تاسو کړوي هغه په ده دېر ګران (او درانه) تماميږي، ستاسې د ښېګنې حریص دی، پر مؤمنانو مهربان خواخوږی دی. د التوبة سورت: ۱۲۸ ایت.

او له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: خپل کورونه قبرونه مه ګرځوئ، او زما قبر عید مه جوړوئ، اوپر ما درود ووایاست؛ ځکه ستاسو درود ماته رسیږي هر چیرې چې یاست. ابوداؤود په حسن سند سره روایت کړی اوراویان یې ثقه دي.

او له علي بن حسین څخه روایت دی: چې هغه یو سړی ولید چې د نبي – صلی الله علیه وسلم– له قبر سره یو غار ته ننوته، او دعا به یې کوله، نو هغه منع کړ او ویې ویل: آیا تاسو ته هغه څه بیان نه کړم چې له خپل پلاره مې اورېدلي، هغه زما د نیکه څخه هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه چې فرمایل یې: زما قبر عید( د مېلې ځای) مه ګرځوئ، او مه مو کورونه قبرونه جوړوئ، او پر ما درود ووایاست؛ ځکه ستاسو سلام ویل ماته رسیږي هرچیرې چې یاست. په (المختارة) کې یې روایت کړی دی.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړۍ: د براءة آیت تفسیر.

دویمه: د خپل امت تر ورروستي بریده له دغه څرڅایه لیرې کول.

دریيمه: پر موږ د هغه د حرص، زړه سوي او لوریینې یادونه.

څلورمه: د خپل قبر په یو ځانګړي دول زیارت کولو څخه منع کول سره لدې چې د هغه زیارت تر تولو غوره عمل دی.

**پنځمه:** له زيات زيارت کولو څخه منع.

**شپږمه:** په کور کې نفلونو ته هڅونه.

**اوومه:** د هغوی په اند دا پخه خبره ده چې په قبرستان کې لمونځ نه کيږي.

**اتمه:** د هغه له لوري دا علت بيانول چې د يوچا درود او سلام هغه ته رسيږي که څه هم لېرې وي؛ نو د هغه څه اړتيا نشته چې د نېږدې والي د ارادې ګمان يې کيږي.

**نهمه:** دا چې هغه -صلى الله عليه وسلم- په برزخ کې په داسې حال کې دی چې د خپل امت له اعمالو درود او سلام پر هغه وړاندې کيږي.



## باب دی په بیان د دې کې چې د دغه امت ځینې به بُتان لمانځي.

او د الله تعالی دا قول: آیا هغه خلک دې نه دي لیدلي چې د کتاب یوه برخه ورکړل شوې ده خو هغوی بیا هم په سحر او شیطان او باطل معبود باور کوي.

د النساء سورت: ٥١ آیت.

او دا قول یې: ورته وایه: آیا هغه خلك دروښیم چې د الله پر وړاندې د جزا له مخې لدې هم بد وي؟ هر هغه څوك چې الله رټلي، غضب یې پرې کړی او بیزوګان او خنزیران یې ترې جوړ کړي او غیر الله یې لمانځلی. د المائدة سورت: ٦١ آیت

او دا قول یې: هغه کسان چې د دوی پر کار برلاسي شوي وو، وویل: هرومرو به یو عبادت ځای پرې جوړوو. د الکهف سورت: ٢١ ایت.

له ابو سعید رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تاسو به هرومرو د هغو خلکو پل پر پل پیروي وکړئ چې له تاسو مخکې وو، تردې که هغوی د خادمې غار ته ننوتلي وي تاسو به هم ننوځئ

هغوی وویل: اې د الله رسوله! یهود او نصارا بنیي؟

هغه وفرمایل: هو نو بل څوک؟

دغه روایت بخاري او مسلم روایت کړی.

او د مسلم په روایت کې له ثوبان رضي الله عنه څخه روایت دی، چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: پرته له شکه الله ماته ځمکه راټوله کړه تردې چې د هغې ختیځې او لویدیځې برخې مې ولیدلې، او زما د امت پاچایي به تر هغو برخو رسیږي چې ماته راټولې کړل شوې وې.

او ماته دوې زېرمې راکړل شوې:د روم او فارس خزانې.

او ما مې له پالونکي څخه د امت لپاره وغوښتل چې هغوی په وچکالی تباه نه کړي او پر هغوی له خپلو ځانو پرته بل دښمن مسلط نه کړی چې له بیخه یې وباسي.

او پرته له شکه پالونکي مې وويل: اې محمده! کله چې کومه پرېکړه وکړم؛ نو هغه نه ردېږي، او ما ستا امت ته دا ورکړي چې هغوی به په وچکالۍ نه تباه کوم، او پر هغوی به له هغوی پرته بل داسې دښمن نه مسلطوم، چې له بېخه يې وباسي، او که څه هم له هر طرفه پرې را ټول شي، آن تردې د هغوی ځينې به ځينې سره وژني او ځينې به يې ځينې بنديانوي.

برقاني په خپل صحيح کې روايت کړی او زياته کړې يې ده: او پرته له شکه زه مې د خپل امت په اړه له لارورکوونکو امامانو څخه وېرېږم، او کله چې پرهغوی توره را پرېوته تر قيامته به ترې پورته نه کړل شي، او قيامت به تر هغه رانه‌څته نه شي چې ترڅو زما د امت يوه ډله له مشرکانو سره يوځای نه شي او زما د امت يو ټولی بتان ونه لمانځي، او زما په امت کې به دېرش درواغجن وي، هر يو به ګمان کوي چې ګواکې دی نبي دی، خو زه ترټولو وروستی نبي يم له ما وروسته بل نبي نشته، او زما له امته به تل يوه په حق ډله بريالۍ وي، څوک يې چې مرسته پرېږدي هغوی ته زيان نه شي رسولای تردې چې د الله تبارک و تعالی امر راشي.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

لومړی: د النساء د ايت تفسير

دويمه: د المائده د ايت تفسير

درېيمه: د الکهف د ايت تفسير

څلورمه: او دغه يې تر ټولو مهمه ده چې پر جبت او طاغوت د ايمان راوړلو معنا

پدې ځای کې څه ده؟

آيا هغه د زړه باور دی؟

او که د څښتنانو موافقت يې دی، سره له دې چې له هغې سره به کينه او د هغې د بطلان پېژندنه وي.

**پنځمه:** د هغوی دا وينا: چې هغه کافران کوم چې خپل کفر پېژني له مؤمنانو زيات لارموندونکي دي.

**شپږمه:** او د کومې چې وضاحت مطلوب دی هغه دا چې په دغه امت کې به داسې څه پېښيږي لکه د ابوسعيد په حديث کې چې راغلي دي.

**اوومه:** د هغې د رامنځته کېدو په ډاګه کول، معنا دا چې د دغه امت په ډېرو ډلو کې به د بُتانو لمانځنه کيږي.

**اتمه:** تر ټولو حيرانوونکې دا ده چې مختار غوندې څوک به د نبوت دعوی کوي چې د شهادت کلمې هم وايي او دا هم په ډاګه کوي چې له همدغه امت څخه دی، او وايي چې رسول حق او قرآن حق دی او په دې کې دا هم دي چې محمد وروستی د رسولانو دی، او له دې سره په دې ټولو کې دی رښتونی ګڼل کيږي سره لدې چې څرګند ټکر دی، او مختار د صحابه و په وروستي زمانه کې را پيداشو او ډېر شمېر خلکو يې پيروي وکړه.

**نهمه:** د دې خبرې زېری چې حق په يو مخ له منځه نه ځي لکه څنګه چې مخکې له منځه تللی و، بلکې تل به يوه ډله پرې ولاړه وي.

**لسمه:** لويه نخښه يې داده سره لدې چې هغوی لږ دي خو بيا هم چې څوک شا ور کړځوي او مخالفت يې کوي زيان نه شي ورته رسولی.

**يوولسمه:** دا چې دغه شرط به د قيامت تر ورځې وي.

**دولسمه:** هغه لويې نښې چې په دغه کې دي له هغو څخه: يوه يې دا ده چې الله هغه لره د ختيځ او لوېديځ برخې سره راټولې کړې او د دغه پر معنا يې خبر کړ، همغه ډول رامنځته شول لکه څنګه يې چې خبر کړی و، په خلاف د شمال او جنوب، او پر دې يې خبرول چې دوې زېرمې ورکړل شوي دي، او د خپل امت په حق کې يې دوې دعاوې قبولې شوې او درېيمه نه، او د ځينو لخوا د ځينو پر تباه کولو او د ځينو لخوا د ځينو پر بندي کولو يې خبرول، د امت په اړه يې له لارورکوونکو امامانوڅخه وېرول، په دغه امت کې د درواغو د نبيانو په

پيداکېدلو يې خبرول، او د بريالۍ ډلې پر پاتې کېدلو يې خبرول، او دا همغسې رامنځته شول لکه څنګه يې چې خبر ورکړی و، سره له دې چې هره يوه يې له عقلي پلوه لېرې وه.

**دیارلسمه:** د خپل امت په اړه له لارورکوونکو امامانو څخه په ځانګړي وېرول.

**څوارلسمه:** د بُتانو د عبادت پر معنا خبرول.



## باب دی په بیان د کوډو کې.

او د الله تعالى وينا: اوپرته له شکه هغوی پوه شول چې څوک هغه اخلي هغو لره په آخرت کې هيڅ برخه نشته. د البقرة سورت: ۱۰۲ ايت

او د هغه وينا: پر جبت(سحر) او طاغوت(شيطان) باور لري. د النساء سورت: ۵۱ ايت

عمر وايي: جبت کوډې او طاغوت شيطان دی

او جابر وايي: طواغيت هغه غيب ويونکي دي چې شيطانان ورته راځي، په هره قبيله کې يو وي.

له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی: چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: له اوو تباه کوونکو څخه ځان وساتئ.

هغوی وويل: اې د الله رسوله! هغه څه دي؟

هغه وفرمايل: له الله سره شريک نيول، کوډې، د هغه چا وژل چې له حق پرته يې الله وژل ناروا کړي وي، د سود خوړل، د يتيم مال خوړل، د جنګ له ډګره تېښته، پر بې خبره پاک لمنو مېرمنو تور لګول.

او له جندب څخه مرفوع روايت دی: د کوډګر جزا په توره وهل دي. ترمذي روايت کړی او وايي: صحيح دی خو موقوف دی.

او بخاري کې له بجالة بن عبده څخه روايت دی وايي: عمربن الخطاب وليکل چې هر کوډګر او کوډګره ووژنئ، وايي: نو موږ درې کوډګر ووژل.

له حفصې څخه صحيح روايت دی چې هغې د خپلې يوې داسې مينځې د وژلو امر وکړ چې کوډې يې پرې کړې وې، نو هغه ووژل شوه.

او همدارنګه له جندب څخه صحيح روايت دی.

احمد د نبي – صلى الله عليه وسلم – له دريو صحابه وو څخه په روايت کولو ويلي دي.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړۍ: د البقره سورت د آیت تفسیر

دویمه: د النساء سورت د آیت تفسیر

دریيمه: د جبت او طاغوت تفسیر او ترمنځ یې توپیر

څلورمه: دا چې طاغوت کله له پېریانو څخه وي او کله له انسانانو څخه.

پنځمه: دمنعې اړوند د ځانګړو اوو تباه کوونکو پېژندنه.

شپږمه: دا چې کوډې کوونکی ته به کافر ویلی شي.

اوومه: دا چې هغه به وژل کیږي توبه به یې نه منل کیږي.

اتمه: په مسلمانانو کې د دغه شتون د عمر په زمانه کې و؛ نو په وروستیو کې به څنګه وي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د هغه شي کې چې د سحر نوعه ده.

احمد وايي: د جعفر زوی محمد له عوف څخه، هغه حيان بن العلاء، هغه له قطن بن قبيصة او هغه يې له پلار څخه روايت کوي چې هغه له نبي صلی الله عليه وسلم څخه اوريدلي چې فرمايل يې: چې عيافة، طرق او طيرة د جبت له ډلې څخه دي.

عوف وايي: عيافة د بد پالی پر بنسټ د مرغانو شړل دي او طرق هغه ليکه ده چې په ځمکه کې اېستل کيږي.

او جبت:

حسن وايي: د شيطان غږ دی.

سند يې سم دی د ابوداؤد، نسائي او له ابن حبان څخه په خپل صحيح مسند راغلی.

له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې له ستورو يوه برخه ترلاسه کړه(ناروا علم نجوم) هغه له کوډو څخه برخه ترلاسه کړه، څومره يې چې زياته کړه همدومره يې زياته کړه.

ابوداؤد روايت کړی او سند يې صيح دی.

او په نسائي کې له ابوهريره رضي الله عنه څخه حديث دی. چا چې غوټه وتړله بيا يې پکې پوکی وکړ؛ نو هغه کوډې وکړې، او چا چې کوډې وکړې هغه شرک وکړ، او چا چې يو څه پر ځان وتړل همغه ته به وسپارل شي.

او له ابن مسعود څخه روايت دی: چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: آيا د عضه په اړه خبر در نه کړم؟ چې هغه چغل خوري او د خلکو ترمنځ د فساد پيدا کولو د پاره خبرو وړلو ته ويل کيږي. مسلم روايت کړی.

او هغوی دواړه له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت کوي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي: ځيني بيان لکه کوډې داسې وي.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

**لومړۍ:** د بخت ازمويلو په موخه مرغان الوځول، په ځمکه کې ليکې کشکول او بد پالي(تشاوم) کول له کوډو څخه دي.

**دويمه:** د العافية، الطرق، او الطيرة تفسير.

**دريمه:** دا چې د ستورو پوهه يو ډول کوډې دي.

**څلورمه:** دا غوټه له پوکي سره هم له دغو څخه دي.

**پنځمه:** دا چې چغل خوري هم له دغو څخه دي.

**شپږمه:** دا چې له دغو څخه ځينې فصيح بيان هم دی.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د غیب ویونکو او هغوی ته ورته خلکو کې

(کهان د کاهن جمع ده کاهن هغه چا ته وایې چې شیطان ورته خبرې راوړي بیا دغه کاهن د هغې سره نورې سل درواغ خبرې یو ځای کړي او په خلکو کې یې خپروي).

مسلم په خپل صحیح کې د نبي صلی الله علیه وسلم له ځینو مېرمنو او هغو له نبي صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې هغه وفرمایل: څوک چې غیب ویونکي(د عراف تفسیر نزدې راروان دی) ته راشي، د څه په اړه پوښتنه ترې وکړي او د هغه وینا ومني د هغه به څلوېښت ورځې لمونځ نه قبلیږي.

ابو هریره رضي الله عنه له نبي صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې ویې فرمایل: څوک چې غیب ویونکي ته راشي او په هغه څه کې یې تصدیق وکړي چې هغه یې وایي؛ نو پر هغه څه یې کفر وکړ چې پر محمد صلی الله علیه وسلم نازل کړل شوي دي. ابوداؤد روایت کړی دی.

او څلور نورو او حاکم هم روایت کړی دی.

او ویلي یې دي: د هغوی دواړو له شرط سره سم صحیح دی. او ترې روایت دی چې څوک غیب ویونکي ته راشي، په هغه څه کې یې تصدیق وکړي چې هغه یې وایي؛ نو پر هغه څه یې کفر وکړ چې پر محمد صلی الله علیه وسلم نازل کړی شوي دي.

او ابو یعلی په جید سند سره له ابن مسعود څخه موقوفا دېته ورته روایت کوي.

او له عمران بن حصین رضي الله عنه څخه مرفوعا روایت دی: هغه څوک له موږ څخه ندی چې بد پالي نیسي او یا د هغوی لپاره بد پالي کیږي، یا پخپله کهانت کوي او یا د هغه لپاره کهانت کیږي، یا کوډې کوي او یا د هغه لپاره کوډې کیږي، او څوک چې غیب ویونکي ته راشي په هغه څه کې یې تصدیق وکړي چې هغه یې وایي؛ نو هغه پر هغه څه کفر وکړ چې پر محمد – صلی الله علیه وسلم– نازل کړل شوي دي.

بزاز په ښه سند سره روایت کړی دی.

او طبراني په اوسط کې د ابن عباس حدیث په حسن اسناد سره روایت کړی پرته لدې وینا څخه چې: څوک غیب ویونکي ته راغی... تر پایه.

بغوي وایي: عراف: هغه څوک دی چې په سریزو د کارونو د معلومولو دعوی کوي د یو غلا شوي شی یا د غلا ځای او داسې نورو شیانو د معلومولو د پاره په دغه سریزو ښودنه کوي.

او ویل شوي: عراف کاهن دی او کاهن هغه څوک دی چې په راتلونکي کې د پټوخبرو په اړه خبر ورکوي.

او ویل شوي: چې هغه څوک دی چې د زړه د خبرو په اړه خبر ورکوي.

او ابوالعباس بن تیمیه وایي: عراف: د کاهن، نجومي، رمال او دېته ورته خلکو نوم دی، کوم چې په دغه ډول د چارو د پېژندګلوی خبرې کوي.

او ابن عباس د هغه قوم په اړه چې ابجد لیکي او په ستورو کې ګوري وایي: زه فکر نه کوم چې څوک دغه کار کوي هغه به د الله په وړاندې کومه برخه ولري.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

لومړۍ: دا چې د کاهن خبره منل له قرآن سره په باور لرلو نه یوځای کیږي.

دویمه: دا خبره په ډاګه کول چې دا کار کفر دی.

دریيمه: د چا لپاره چې غیب ویل کیږي د هغه یادونه.

څلورمه: د هغه چا یادونه چې په اړه یې بد پالي(تشاوم) کیږي.

پنځمه: د هغه چا یادونه چې کوډې ورلره کیږي.

شپږمه: د هغه چا یادونه چې ابجد زده کوي.

اوومه: د عراف او کاهن تر منځ د توپیر یادونه.

## باب دی په بیان د هغه څه کې چې د کوډو د اېستلو په اړه راغلي.

له جابر رضي الله عنه څخه روایت دی: چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د کوډو اېستلو په اړه وپوښتل شول؛ نو هغه وفرمایل: هغه هم د شیطاان عمل دی. احمد او ابوداؤد په سم سند روایت کړی او وایي: احمد د هغو په اړه وپوښتل شو؛ نو ویې فرمایل: ابن مسعود دا هرڅه بد ګڼل.

په بخاري کې له قتاده څخه راغلي: چې ما ابن مسیب ته وویل: پر یوسړي کوډې شوې وي او له ښځې بند کړل شوی وي ایا له هغه څخه کوډې لېرې کول روا دي.

هغه وفرمایل: څه پروا نه کوي، ځکه له دې څخه موخه اصلاح ده؛ نو پر کوم څه چې ګټه رسول کېږي؛ نو له هغه څخه منع نه ده شوې. پای.

او له حسن څخه روایت کېږي چې هغه وفرمایل: کوډې یوازې کوډګر له منځه وړلای شي.

ابن قیم وايي: نشره: له هغه چا څخه چې کوډې پرې شوې د کوډو له منځه وړلو ته وايي چې په دوه ډوله دي.

یو یې: د کوډو په کوډو له منځه وړل دي(د سحر علاج په سحر)، چې هغه د شیطان کار دی، او د حسن له وینا څخه همدغه موخه ده، چې کوډې کوونکی او کوډې غوښتونکی په هغه څه شیطان ته ځان نېږدې کوي کوم چې شیطان خوښوي؛ نو خپل عمل له هغه چا څخه باطلوي چې کوډې پرې شوې وي.

دویم: په دم، او شرعي تعویذونو، دوایانو او مباحو دعاوو د کوډو له منځه وړل دي چې دغه روا دي.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړۍ: د کوډو(د سحر علاج په سحر سره) څخه منع.

دویمه: د منع شوي او روا شوي ترمنځ توپیر چې ستونزه له منځه وړي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د بد پالی کې.

او د الله تعالی وینا: خبر اوسئ چې د هغوی سپیره والی له الله سره و، خو زیاتره یې نه پوهیږي.

د الأعراف سورت: ۱۳۱ ایت

او د هغه وینا: وېلې: ستاسو بد پالي نیول تاسې سره ده، ایا (په دې کې سپیره والی دی) چې تاسو ته نصیحت وشو؟ نه، په اصل کې تاسې خپله زیاتی کوونکي یاست.

د یس سورت: ۱۹ ایت

او له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د یو مریض څخه مرض پخپل طبعیت روغ ته نه انتقالیږي، نه سپیره والی شته(تشاوم)، نه د مرغه الوزول کوم اغهز لري او نه دصفر میاشتې کې سپیره والی سته.

هغوی دواړو(بخاري او مسلم) روایت کړی دی.

مسلم لا دا هم زیاته کړې: چې نه نوء (د ستوري له امله باران شته او نه غول یعني خیالي څناور(شیطانان او پیریان د الله د ذکر سره څوک نه شي هلاکولای).

او هغوی دواړو لره له انس څخه روایت دی چې ویلي دي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نه د ناروغۍ لېږد شته پخپل طبیعت)، نه سپیره والی شته او فال مې خوښیږي، هغوی وویل فال څه شی وي.

هغه وفرمایل: ښه خبره.

او ابوداؤد لره له عقبة بن عامر څخه روایت هغه وایي: د رسول الله په وړاندې بد پالي نیول یاد کړل شو؛ نو هغه وفرمایل: ښه یې فال دی او مسلمان نه شي واپس کولای، کله چې یو له تاسو داسې څه ووینې چې نه یې خوښیږي؛ نو ودې وایي: اې الله یوازې ته نېکۍ راولې اویوازې ته بدۍ له منځه وړې، او نشته گرځیدل له بدیو او نشته طاقت په خوښیو مگر ستا په مدد.

او له ابن مسعود څخه مرفوعا روایت دی: په شيانو سپيره والی نيول شرک دی، په شيانو سپيره والی نيول شرک دی، او هيڅ شی داسې نشته مګر چې الله يې پر بروسه(په الله اعتماد کول) له منځه وړي.

ابوداؤد او ترمذي روايت کړی او صحيح يې بللی، او پای يې د ابن مسعود وينا ګرځولې.

او احمد لره د ابن عمر په حديث کې دي: (څوک چې بد فال نيوني له خپل حاجت څخه را وګرځاوه؛ نو هغه شرک وکړ) هغوی وويل: د دغه کفاره څه ده؟ هغه وفرمايل: دا چې ووايې: اې الله ستا له خير پرته بل خير نشته، ستا له سپيره والي پرته بل سپيره والی نشته او له تا پرته بل څوک په حقه اله نشته.

او هغه لره د الفضل بن عباس رضي الله عنهما په حديث کې دي: بد پالي نيول(چې يو شی وکورې او يا څه واورې) دې ته وايې: چې تا يوځه ته بوځي او يا دې راوګرځوي.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د الله پر هغه وينا تنبيه: (چې د هغوی سپيره والی د الله سره دی) او هغه وينا: (ستاسو بد پالي نيول ستاسو سره ده).

دويمه: ساري ناروغي نشته(مرض د ناروغ څخه روغ ته پخپل طبيعت نه نقليږي، بلکه د الله تعالی په اذن نقليږی).

دريمه: د يو شي په اوريدلو يا ليدلو بد پالي(تشاوم) نشته.

څلورمه: هامه يو مرغه دی دشپې ګرځي د جاهليت والاو عقيده وه چې هامه مرغه به د چا په کور کښيناسته ويل به يې دې کور کې به غم پيښيږي يعنی په دې مرغه به يې بد پالي نيوله(اسلام دغه عقيده باطله کړه).

پنځمه: صفر مياشت کې هم سپيره والی مشته.

شپږمه: پال طيره نه ده، بلکې پال مستحب دی.(لکه مريض ته اواز وکړې په يا سالم تفاولا).

اوومه: د نهکفالی تفسیر.

**اتمه:** دا چې په زړنو کې له دغه څخه د څه واقع کېدل سره لدې چې شه يې نه کني، څه زيان نه رسوي، بلکې الله يې په توکل سره له منځه وړي.

**نهمه:** د هغه څه يادونه چې څوک يې احساس کړي ويې وايي.

**لسمه:** د دې خبرې په ډاګه کول چې بد پالي نيول شرک دی.

**يوولسمه:** د تشاوم (چې څه ووينې يا يې واورې او په هغې بد پالي ونيسې) تفسير.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د نجومی کې (ناروا علم د ستورو).

بخاري په خپل صحیح کې وايي: قتاده ويلي دي: الله دغه ستوري د دريو موخو لپاره پيداکړي دي: د اسمان ښکلا، د شیطانانو ويشتل، داسې نښې چې لارښوونه پرې کيږي، نو څوک چې له دې پرته بل څه تاويل پکې وکړي، تېروتنه يې وکړه او خپله برخه يې ضايع کړه او د هغه څه تکلف يې وکړ چې پوهه يې نه لري. پای.

قتاده د سپوږمۍ د منزلونو پوهه مکروه ګڼلې ده، ابن عيينه يې اجازه نده ورکړې، دا خبره حرب له هغوی دواړو ياده کړې ده.

د منزلونو د پوهې په اړه احمد او اسحاق اجازه ورکړې ده.

او له ابوموسی څخه روايت دی وايي: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: درې کسان به جنت ته داخل نه شي: په شرابو روږدی، د خپلوۍ پرې کوونکی او د کوډو تصديقوونکی.

احمد او ابن حبان په خپل صحيح کې روايت کړی دی.

پدې کې يو شمير مسئلې دي:

لومړی: د ستورو په پيدايښت کې حکمت.

دويمه: پر هغه چا رد څوک چې له دغه پرته د بل څه ګومان کوي.

دريمه: د منزلونو د پوهې په ترلاسه کولو کې د اختلاف يادونه.

څلورمه: د هغه چا لپاره د سزا ژمنه چې د کوډو تصديق کوي، که څهرې پر دې پوه شي چې هغه باطل دي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د باران غوښتلو د سپوږمۍ په منزلونو

(زجر هغه چاته چې د باران نسبت کوي د سپوږمۍ منزلونو ته).

او د الله تعالی وینا: او ګرځوئ خپل شرک وایاست:چې د فلاني فلاني ستوري په وجه باران وشو. د الواقعة سورت: ۸۲ ایت.

او له ابومالک اشعري رضي الله عنه څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څلور شیان زما په امت کې دي چې د جاهلیت له چارو څخه به وي او پرې به یې نږدي؛ پر حسبونو ویاړ، په نسبونو کې پیغور ورکول، د ستورو په مرسته د باران غوښتل او پر مړو ژړا (چغې وهل).

او وېي وفرمایل: پر مړو ژړا کوونکې که له مرګ مخکې توبه ونه باسي، د قیامت په ورځ به په داسې حال کې را پاڅول کیږي چې پر هغوی به یو کمیس د ولې شوو میسو او بل به (د سکیبیس خارښ)ناروغۍ غوندې ډال وي. مسلم روایت کړی.

او هغوی دواړه له زید بن خالد رضي الله عنه څخه روایت کوي چې فرمایل یې: رسول الله صلی الله علیه وسلم په حدیبیه کې موږ ته د سهار لمونځ وختي راکړ، کله یې چې مخ وګرځوئ، خلکو ته یې مخ کړ او وېي فرمایل: آیا تاسو پوهېږئ چې پالونکي مو څه وویل؟ هغوی وویل: الله او د هغه رسول ښه پوهیږي، هغه وفرمایل: زما له بندګانو به یو پر ما کافر او بل مؤمن ګرځي، چا چې وویل: د الله پر پېرزوینه او لورېینه را باندې و اورېدل، نو هغه پر ما مؤمن او ستورو کافر دی، او چا چې وویل: پرموږ د دغه او دغه ستوري له امله و اورېدل، هغه پر ما کافر او ستوري مؤمن دی.

او هغوی دواړو لره د ابن عباس حدیث په همدغه معنا دی او پکې راغلي: ځینو وویل: پرته له شکه دغه او دغه ستوري رېښتیا وویل؛ نو الله دغه ایتونه نازل کړل.

نو زه د ستورو پرېوتلو پر ځایونو قسم کوم. او که پوهېږئ دا په رېښتیا لوی قسم دی. چې حقیقتاً دا یو عزتمن قرآن دی. چې یو پټ ساتل شوی کتاب کې دی. هغه ته دې پرته له پاکو بل څوك لاس نه وروړي(ملایک په لوح محفوظ کې). د رب العالمین له خوا نازل شوی دی. ایا

نو تاسې د دې خبرې (قرآن) سپك ګڼونكي ياست؟ او (يوازې دا خبره) خپله برخه ګرځوئ چې دروغ يې ګڼئ.

د الواقعة سورت: ۷۵- ۸۲ ايتونه.

په دغه خبره كې دېرې مسئلې دي:

لومړۍ: د الواقعة ايت تفسير.

دويمه: د جاهليت د زماې د څلورو شيانو يادونه.

دريمه: په ځينو شيانو كې د كفر يادونه.

څلورمه: ځيني كفر داسې وي چې له ملت څخه پرې نه ايستل كيږي.

پنځمه: د هغه دا وينا: زما ځيني بندګان پر ما مؤمن او ځيني كافر شول د نعمت د نزول له امله.

شپږمه: په داسې ځاى كې ايمان ته ځيركتيا.

اوومه: په داسې ځاى كې كفر ته ځيركتيا.

اتمه: د هغه دغه وينا ته ځيركتيا (دغه او دغه ستوري ريښتيا وويل)

نهمه: د عالم له لوري متعلم ته د پوښتنې په طريقه مسئله ايستل او د هغې په اړه پوښتنه كول؛ د هغه د وينا له امله: آيا تاسې خبر ياست چې پالونكي مو څه وويل؟.

لسمه: پر مړي ژړا كوونكې لپاره د سزا ژمنه.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د الله تعالی د وینا کې: او ځینې خلک داسې دي چې له الله پرته نور سیالان داسې نیسي چې له هغوی سره داسې مینه کوي لکه له الله سره مینه.

د البقرة سورت: ۱٦٥ ایت.

او د هغه وینا: ورته ووایه: که پلرونه مو، زامن مو، ورونه مو، مېرمنې مو، خپل خپلوان مو، هغه مالونه چې ګټلي مودي، هغه سوداګري چې تاسو یې له سرېدو وېرېږئ او هغه کورونه مو چې (ډېر) یې خوښوئ، تر الله، رسول یې او د هغه په لار کې تر جهاد کولو درته غوره وي؛ نو بیا تر هغه صبر وکړئ چې الله خپله پرېکړه درته راوړي او الله فاسقانو ته لارښوونه نه کوي.
د التوبة سورت: ۲٤ ایت.

له انس څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: تر هغه ستاسو د یوه ایمان نه دی بشپړ چې له ما سره یې تر خپل زوی پلار یې او ټولو خلکو زیاته مینه نه وي.

هغوی دواړو(بخاري او مسلم) روایت کړی دی.

او هغوی دواړو لره له انس څخه روایت دی چې وېې ویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: درې شیان داسې دي چې په چا کې وي هغه به د ایمان خوند ومومي: دا چې الله او د هغه رسول هغه ته تر ټولو محبوب وي، او له چا سره چې مینه کوي یوازې د الله لپاره یې وکړي، او دا چې کفر ته ورګرځېدل؛ چې الله یوځل ترې ژغورلی وي داسې بد وګڼي لکه څوک چې په اور کې غورځېدل بد ګڼي.

او په یو روایت کې دي: له تاسو یو هم تر هغه د ایمان خوند نه شي موندلی ترڅو..... تر پایه.

او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی وایي: څوک چې د الله لپاره مینه کوي، د الله لپاره کینه کوي، او د الله لپاره دوستي کوي او د الله لپاره دښمني کوي، هغه به پر دغه سره د الله دوستي ترلاسه کړي، او هیڅ بنده به د ایمان خوند ونه مومي که څه هم لمنځونه او روژې یې زیاتې شي، تر څو داسې نه وي شوي، او د خلکو تر منځ عامه ورورګلوي د دنیوي چارو له

امله کرځېدلې ده او دغه یې ښبنتن ته هیڅ ګټه نه رسوي. دغه روایت ابن جریر روایت کړی دی.

او ابن عباس د الله تعالی په دغه وینا کې فرمایي: (او له هغوی اسباب پرې شول) وایي: مینه.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د البقرة سورت د ایت تفسیر.

دویمه: د براءة ایت تفسیر.

درېیمه: د ځان، کورنۍ او مال څخه له رسول صلی الله علیه وسلم سره د زیاتې مینې واجبوالی.

څلورمه: د ایمان نفي له اسلام څخه پر وتلو دلالت نه کوي.

پنځمه: دا چې کله یو انسان د ایمان خوند احساسولای شي او کله یې نه شي موندلای.

شپږمه: د زړه هغه څلور اعمال چې یوازې پر هغو د الله دوستي ترلاسه کیږي او یوازې پر هغو د ایمان خوند ترلاسه کولای شي.

اوومه: د صحابي لخوا پر پېښه پوهېدل: چې عمومي ورورګلوي د دنیوي چارې پر بنسټ وي.

اتمه: د دغه ایت تفسیر(چې اسباب وریاندې پرې شول)

نهمه: دا چې ځینې مشرکان له الله سره سخته مینه لري.

لسمه: د هغه چا لپاره د سزا ژمنه چې هغه اته شیان له خپل دین څخه ورته محبوب وي.

یوولسمه: دا چې څوک داسې سیال نیسي چې د هغه مینه د الله له مینې سره برابروي؛ نو دا شرک دی.

**باب دی د الله تعالی د وینا په اړه (چې فرمایې). دا خو یوازې شیطان دی چې خپل دوستان وېروي؛ نو تاسو له هغوی مه وېرېږئ او له ما وډار شئ که چېرې مؤمنان یاست.**

د آل عمران سورت: ۱۷۵ ایت.

او د هغه وینا: بېشکه جوماتونه خو هغه څوک ودانوي چې پر الله د آخرت په ورځ باور لري، بشپړه لمونځ کوي، زکات اداکوي او یوازې له الله څخه وېرېږي، همدوی هغه کسان دي چې له لار موندونکو څخه به وي. د التوبة سورت: ۱۸ ایت.

او د هغه وینا: او ځیني خلک هغه دي چې وایي مونږ پر الله ایمان راوړی، خو کله چې د الله په لار کې وځورول شي، د خلکو ازموینه د الله د عذاب غوندې ګڼي. د العنکبوت سورت: ۱۰ ایت.

له ابوسعید رضي الله عنه څخه مرفوعا روایت دی: او له کمزورې باور څخه دا هم دي چې د الله د غصې په بدل کې خلک راضي کړې، او د الله پر روزۍ د هغوی ستاینه وکړې، پر هغه څه یې بد بیان کړې چې الله نه دي درکړي، بېشکه د الله روزي د حریص حرص نه شي راکشولی او نه یې د نه خوښوونکي ناخوښي ردولای شي.

او له عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چا چې د الله رضا د خلکو په نارضا کولو سره ولټوله، الله به له هغه څخه راضي شي او خلک به ترې راضي کړي، او چا چې د خلکو خوښه د الله په ناخوښۍ سره ولټوله، الله به پرې غصه شي او خلک به پرې غصه کړي. ابن حبان په خپل صحیح کې روایت کړی دی.

پدې کې یو شمیر مسئلې دي:

لومړۍ: د آل عمران د ایت تفسیر:

دویمه: د براءة ایت تفسیر.

**دریيمه:** د العنکبوت د ایت تفسیر.

**څلورمه:** دا چې یقین(د زړه عمل) کمزوری او قوي کیږي.

**پنځمه:** د کمزوری نښانه يې او له هغې څخه دغه درې شیان هم دي.

**شپږمه:** دا چې د الله لپاره د وېرې ځانګړي کول له فرائضو څخه دي.

**اوومه:** د هغه چا د ثواب یادونه چې هغه يې ترسره کړي وي.

**اتمه:** د هغه چا د سزا یادونه چې نه يې وي ترسره کړي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د الله تعالی ددې وینا کې: او یوازې پر الله بروسه وکړئ که مؤمنان یاست.

د المائدة سورت: ۲۳ ایت

او د هغه وینا: بېشکه مؤمنان هغه کسان دي کله چې الله یاد کړل شي د هغوی زړونه په وېره شي او کله چې د هغه آیتونه پرې لوستل کیږي ایمان یې ور زیاتوي او پر خپل پالونکي بروسه کوي.

د الأنفال سورت: ۲ ایت.

او د هغه وینا: اې نبي! الله او له مؤمنانو دي چې چا پیروي کړې درته بسنه کوي.

د الأنفال سورت: ٦٤ ایت.

او د هغه وینا: او چا چې پر الله بروسه وکړه؛ نو هغه ورلره بسنه کوي. د الطلاق سورت: ۳ ایت

له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی وایي: الله زموږ لپاره بسنه کوي او غوره کار جوړوونکی دی. دغه خبره ابراهیم علیه السلام هغه مهال وکړه چې کله اور کې واچول شو؛ او محمد صلی الله علیه وسلم هغه مهال وویله کله چې هغوی ورته وویل: پرته له شکه خلک تاسو لره راټول شول؛ نو ترې وډار شئ، هغه یې لا ایمان زیات کړ او ویې ویل الله زموږ لپاره بسنه کوي او هغه غوره کارجوړوونکی دی.

د آل عمرات سورت: ۱۷۳ ایت.

هغه بخاري او نسائي روایت کړی دی.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: دا چې بروسه له فرائضو څخه ده.

**دویمه:** دا چې هغه د ایمان له شرطونو څخه ده.

**دریيمه:** د الانفال د ایت تفسیر.

**څلورمه:** پای کې د ایت تفسیر.

**پنځمه:** د الطلاق د ایت تفسیر

**شپږمه:** د دغې کلمې د شان لوی والی، او دا چې دغه د ابراهیم علیه الصلاة والسلام او محمد صلی الله علیه وسلم ویناوې وې د سختیو په حالت کې.

★★★★★★★★

## باب دی د الله تعالی د وینا په اړه (چې فرمایي). آیا هغوی د الله د پلان په اړه ډاډه دي، د الله د پلان په اړه یوازې تاواني خلک ډاډه کیږي.

د الأعراف سورت: ۹۹ ایت.

او د هغه وینا: او څوک چې د خپل پالونکي له لورېینې نا هیلي کیږي هغه یوازې لاروورکي دي.

د الحجر سورت: ٥٦ ایت

او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د لویو ګناهونو په اړه وپوښتل شو؛ نو ویې فرمایل: له الله سره شریک نیول، د الله له رحمت څخه نا هیلي کېدل او د الله د چل په اړه ډاډه کېدل.

او له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: تر ټولو لوی ګناهونه، له الله سره شریک نیول، د الله د چل د څواب په اړه ډاډه کېدل، د الله له لورېینې نا هیلي کېدل(قنوط سخته نا امیدي)، او د الله له رحمت څخه نا امیده کېدل دي.

عبدالرزاق یې روایت کړی دی.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د الأعراف د آیت تفسیر

دویمه: د الحجر د ایت تفسیر

دریيمه: د هغه چا لپاره د سختې سزا ژمنه چې د الله له مکر څخه بې پروا وي.

څلورمه: د نا هیلی په اړه په سختی سره د سزا ژمنه.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې مسئله کې چې په تقدیري مصیبتونو صبر کول په الله د ایمان څخه دی.

او دا قول يې: او څوک چې پر الله ایمان راوړي، هغه به يې د زړه لارښوونه وکړي او الله پر هرڅه ښه پوه دی. د التغابن سورت: ۱۱ ایت

علقمة وايي: دا هغه سړی دی چې مصیبت ورته ورسیږي؛ نو هغه پردې پوه شي چې دا د الله له لوري دی، پرې راضي شي او تسلیم شي.

او په صحیح مسلم کې له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: دوه شیان په خلکو کې د کفر له وخته دي: ( د یو چا ) نسب پسې سپکې سپورې ویل او پر مړي ژړا کول.

او هغوی دواړو لره له ابن مسعود څخه مرفوعا روایت دی. هغه څوک له موږ څخه ندي چې مخونه وهي، جامې څیروي او د جاهلیت د زمانې په څېر چغې وهي ( کوا کې په تقدیر اعتراض کوي).

او له انس رضي الله عنه څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې الله خپل بنده ته د خیر اراده وکړي، په دنیا کې یې سزا په بیړه ورکوي، او کله چې د شر اراده ورته ولري، د ګناه په اړه يې نیونه نه کوي تردې چې د قیامت په ورځ يې سزا ورکړي.

او نبي صلی الله علیه وسلم فرمايلي: بیشکه د سزا لوی والی د ازموینې له لوی والي سره وي، کله چې الله تعالی کوم قوم سره مینه ولري؛ نو امتحانات ورباندې راولي، څوک چې راضي شي هغه لره رضاء ده او څوک چې غصه شي هغه لره غصه ده. ترمذي حسن بللی دی.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړۍ:** د التغابن د ایت تفسیر

**دویمه:** دا چې دغه پر الله له ایمان څخه دی

**درییمه:** په نسب کې طعن.

**څلورمه:** د هغه چا په اړه د سزا د ژمنې سختوالی چې په ویر کې مخونه وهې، ګرېوانونه څیري او جاهلیت د زمانې بلنه کوي.

**پنځمه:** د الله د خپل بنده لپاره د خیر د ارادې نښانه.

**شپږمه:** او د الله د هغه لپاره د شر د ارادې نښانه.

**اوومه:** د بنده لپاره د الله د مینې نښانه.

**اتمه:** د غصې حراموالی.

**نهمه:** پر ازموینه د رضاء کېدلو ثواب.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د ریاء کې(خپلې نیکۍ خلکو ته خودل د مدح د جلبولو د پاره).

او د الله تعالی وینا: ووایه پرته له شکه زه ستاسو غوندې یو بشر یم وحې راته کیږي، ستاسو الله یو الله دی، څوک چې له خپل پالونکي سره د مخامخ کېدلو امید لري؛ نو ښه کار دې وکړي او د خپل پالونکي په عبادت کې دې هیڅوک هم نه شریکوي.

د الکهف سورت: ۱۱۰ ایت

او له أبي هريرة نه مرفوع روايت شوی: الله تعالی فرمایي: زه له ټولو شریکانو بې پروا یم، چاچې داسې عمل وکړ چې په هغو کې يې له ما سره بل څوک شریک کړ، زه به هغه او شرک يې سره پرېږدم.

مسلم روایت کړی.

او له ابوسعيد څخه مرفوعا روايت دی: آیا زه تاسو پر هغه څه خبر نه کړم چې ستاسو په حق کې زما لپاره تر مسیح دجال هم ډېر داروونکي دي.

هغوی وویل: ولې نه اې د الله رسوله! هغه وفرمایل: پټ شرک، یوسړی به دریږي لمونځ به کوي، نو لمونځ به له دې امله ډېر ښه کوي چې کوم سړی چې ورته ګوري هغه يې ویني. احمد روایت کړی.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د الکهف د ایت تفسیر

دویمه: تر ټولو لوی شی چې نېک عمل ردوي هغه دا چې کله له الله پرته د بل چا لپاره څه پکې داخل شي.

دریيمه: د دغه لپاره د واجبوونکي لامل يادونه چې هغه د غنا (بې پروايې) بشپړوالی دی.

څلورمه: دا چې له لاملونو څخه: يې دا دی چې هغه غوره د شریکانو دی.

**پنځمه:** د نبي صلی الله علیه وسلم پر خپلو صحابه وو د ځان ښودنې څخه ویره.

**شپږمه:** دا چې دغه یې پر دې سره تفسیر کړ چې یوڅوک به د الله لپاره لمونځ کوي، خو هغه به ډېر ښه کوي ترڅو یې هغه څوک ووینې چې ورته ګوري.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د شرک کې:

### کله چې یو انسان په دیني عمل صرف د دنیا اراده ولري

او د الله تعالی وینا کې: څوک چې د دنیا ژوند او د هغې ښکلا غواړي؛ نو په دنیا کې به یې د عملونو بدله بشپړه ورکړو او له هغوی به هیڅ هم کم نه کړای شي. همدوی هغه کسان دي چې په آخرت کې به یوازې هغوی لره اور وي او څه یې چې پکې کړي دي هغه به بابېزه شي او څه یې چې کول هغه به باطل وي. د هود سورت: ۱۵– ۱٦ ایتونه

په صحیح کې له ابوهریره څخه روایت دی وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د دینار بنده دې تباه شي او د درهم بنده دې تباه شي.

د ښکلو جامو بنده دې تباه شي.

د لباس(خمیصه او خمیله جامو ته وایي نوعې یې بدلې دي) بنده دې تباه شي.

که ورکړل شي خوشحالیږي، که ورنه کړل شي په غصه کیږي، تباه دې شي او سرچپه دې شي او کله چې په ستونزه کې کیر شي نه دې ترې خلاصیږي.

خوښي ده د هغه بنده لپاره چې د الله په لار کې د خپل آس قیضه نیوونکی وي، سر یې ببر او پښې یې سپېرې وي.

که په پېره کې وي نو په پېره کې وي.

او که په کتار کې وي نو په کتار کې وي.

که اجازه وغواړي، اجازه نه ورکول کیږي، که سپارښتنه وکړي، سپارښتنه یې نه منل کیږي.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** د انسان لخوا د آخرت په عمل د دنیا اراده لرل.

**دویمه:** د هود د آیت تفسیر.

**دریمه:** د مسلمان انسان د دینار، درهم او ښکلو جامو پر بنده نومول.

**شلورمه:** د دغه تفسير په دې سره چې كه هغه ته څه ورکړل شي، راضي وي او كه ورنه كړل شي، غصه كيږي.

**پنځمه:** د هغه وينا: (( تباه او سرچپه دې شي))

**شپږمه:** د هغه وينا: (( او كه اغزی پكې لاړ شي ورڅخه دې ونه ايستل شي )).

**اوومه:** د هغه مجاهد ستاينه چې پر دغو صفتونو متصف وي.

★★★★★★★★

**باب دی په بیان د دې کې چې که څوک د علماوو او مشرانو(حکمرانانو) پیروي په هغه څه کې کوي چې الله حلال کړي وي هغوی یې حراموي او هغه څه حلالوي چې الله حرام کړي وي، نو هغوی یې له الله پرته تشریع جوړوونکي مالکان د حل او د حرمت ونیول.**

او ابن عباس فرمايي: نږدې ده چې پر تاسو به له اسمانه ډبرې را واوریږي، زه وايم رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي، او تاسو وایاست ابوبکر او عمر ویلي دي.

او احمد بن حنبل ویلي: هغو خلکو ته حیران یم چې اسناد او د هغه صحت ورته معلوم وي، خو بیا هم د سفیان رایه خپلوي، الله تعالی فرمايي: هغه خلک دې ووېرېږي چې د هغه د امر(د رسول الله-صلی الله علیه وسلم- د حکم) مخالفت کوي چې هغوی ته دې کومه فتنه ورسیږي(مشرک به شي) او یا دردوونکی عذاب ورته ورسیږي. د النور سورت: ٦٣ ایت.

آیا پوهېږې چې فتنه څه ده؟ فتنه: شرک دی، کېدای شي کله چې د هغه ځینې وینا رد کړي، په زړه کې به یې څه کوږوالی راشي؛ نو تباه به شي.

له عدي بن حاتم څخه روایت دی: چې نبي صلی الله علیه وسلم دغه ایت لوستلو. هغوی خپل علماء او پیران تشریع جوړوونکي نیولي وو پرته د الله څخه او مسیح زوی د مریمې هم؛ او هغوی ته یوازې د یو الله د لمانځلو امر شوی و نشته لایق د عبادت مگر هغه ذات(الله) هغه پاک دی د شریکانو څخه .

د التوبة سورت: ٣١ ایت.

ما ورته وویل: موږ خو د هغوی عبادت نه کوو.

هغه وفرمایل: آیا هغوی هغه څه نه حراموي چې الله حلال کړي دي؛ نو تاسو یې حرام گرځوئ او هغه څه حلالوي چې الله حرام کړي دي؛ نو تاسو یې حلال گرځوئ.

نو ما وویل: ولې نه.

هغه وفرمایل: خو همدغه یې عبادت دی.

احمد او ترمذي روایت کړی او حسن یې بللی دی.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

**لومړۍ:** د النور د آیت تفسیر.

**دویمه:** د براءة د ایت تفسیر.

**دریيمه:** د هغه عبادت پر معنا تنبیه چې عدي بد ګڼلی دی.

**څلورمه:** د ابن عباس مثال ورکول په ابوبکر او عمر سره، او د احمد مثال ورکول په سفیان سره.

**پنځمه:** د حالاتو دغې پایلې ته راګرځېدل، تردې چې د ډېری خلکو په اند د مذهبي لارښوونکو لمانځل ترټولو د غوره کارونو څخه دي، ولایت او د مذهبي لارښوونکو عبادت ته پوهه او فقه ویل کیږي، بیا حالات دېته بدل شول چې له الله پرته د نېکانو عبادت کېدی، او پر دویمه معنا لمانځل کیږي کوم چې له ناپوهانو څخه دي.

★★★★★★★★

باب دی په بیان د الله تعالی د وینا کې: آیا هغه دې نه دي لیدلي چې ګومان کوي په هغه څه یې ایمان راوړی دی چې پر تا نازل شوي او له تا مخکې نازل شوي خو غواړي چې د پرېکړې لپاره باطل معبود ته ورشي، حال دا چې ورته امر شوی چې هغه دې نه مني، او شیطان (همدا) غواړي چې بې لارې یې کړي (له حقه) په لرې بې لاریتوب سره. او چې ورته وویل شي د الله رالېږلې خبرې ته راشئ اود رسول په لوري، نو منافقان به وینې چې له تانه په کلکه ډډه کوي. نو بیا به څنګه وي چې په خپلو لاسو وړاندې لېږلي عمل له امله یو مصیبت ور ورسیږي، بیا درته راشي په الله به قسمونه کوي چې موږ خو له ښېګڼې او جوړښت پرته بل څه نه غوښتل.

د النساء سورت: ٦٠- ٦٣ آیتونه.

او د هغه وینا: او کله چې هغوی ته وویل شي په ځمکه کې ورانکاري مه کوئ، هغوی وایي موږ یوازې اصلاح کوونکي یو. د البقرة سورت: ١١ آیت.

او د هغه وینا: او په ځمکه کې د هغې له اصلاح وروسته ورانکاری مه کوئ او هغه (الله) په ویره او هیله رابولئ، بېشکه د الله لورېینه نېکانو ته نېږدې ده. د الأعراف سورت: ٥٦ آیت.

او د هغه وینا: آیا هغوی د جاهلیت پرېکړه لټوي، او د هغو خلکو لپاره چې باور لري له الله زیات د ښې پرېکړې والا څوک دی؟. د المائدة سورت: ٥٠ آیت.

له عبدالله بن عمرو څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له تاسو یو هم تر هغه بشپړ ایمان نه شي راوړی تر څو یې خپله نفسي غوښتنه د هغه څه تابع نه وي کرځولې چې زه ورسره راغلی یم.

نووي وایي: دغه حدیث صحیح دی، په کتاب الحجة کې مو په صحیح اسناد سره روایت کړی دی.

او شعبي وایي: د یو منافق او یو یهودي سړي تر منځ شخړه وه.

نویهودي وویل: محمد-صلی الله علیه و سلم- ته پرېکړه ورو.

هغه پوه و چې هغه بډې (رشوت) نه اخلي.

او منافق وویل: یهودي ته خپله پرېکړه ورو، ځکه هغه پوهېدی چې هغوی رشوت (بډې) اخلي.

نو دواړه په دې یوه خوله شول چې په جهینیه کې یوه غیب ویونکي ته راشي، هغه ته یې پرېکړه راوړه، نو دغه آیت نازل شو چې: ایا ته هغوی نه وینې چې گمان کوي. د النساء سورت: ٦٠- ٦٢ آیتونه.

ویل شوي: دغه آیت د هغو دوو کسانو په اړه نازل شو چې سره شخړه یې وه، یوه یې وویل: نبي - صلی الله علیه وسلم - ته خپله قضیه ورو، بل وویل: کعب بن اشرف ته یې ورو، بیا دواړو عمر ته قضیه یوړه؛ نو یوه یې کیسه ورته بیان کړه.

نو هغه ته یې وویل چې پر رسول الله صلی الله علیه وسلم راضي نه و: آیا همداسې ده.

هغه وویل: هو؛ نو هغه په توره وواهه او ویې واژه.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د النساء د آیت تفسیر او په هغو کې چې د طاغوت په اړه په پوهېدو کې کومه مرسته ده.

دویمه: د البقرة د آیت تفسیر: چې کله ورته وویل شول په ځمکه کې ورانکاری مه کوئ.

دریيمه: د الأعراف د آیت تفسیر: په ځمکه کې د هغې له اصلاح وروسته ورانکاري مه کوئ.

څلورمه: د دغه آیت تفسیر: چې آیا هغوی د جاهلیت پرېکړه لټوي.

پنځمه: څه چې شعبي د لومړي آیت د نزول په اړه ویلي دي.

**شپږمه:** د رېښتيني او درواغو د ايمان تفسير.

**اوومه:** د عمر له منافق سره کيسه.

**اتمه:** دا چې ايمان هيڅاته تر هغه نه حاصلېږي ترڅو يې نفسي غوښتنه د هغه څه تابع نه وي کړځولې چې رسول صلى الله عليه وسلم ورسره راغلى دى.

★★★★★★★★

## باب دی په بيان د دې کې چې څوک له نومونو او صفتونو څخه د څه انکار وکړي

او د الله تعالی وينا: حال دا چې هغوی پر رحمٰن الله کافران شوي دي. ورته ووايه هماغه زما رب دی، له هغه پرته بل معبود نشته، پر هغه مې بروسه کړې او د هماغه لور ته مې ورګرځېدل دي.

د الرعد سورت: ۳۰ آيت.

او په صحيح بخاري کې علي وايي: له خلکو سره هغه خبرې وکړئ چې پرې پوهيږي، آيا تاسې غواړئ د الله او د هغه رسول دې درواغجن وګڼل شي.

عبدالرزاق له معمر څخه روايت کوي، هغه له ابن طاؤس څخه، هغه له خپل پلاره او هغه بيا له ابن عباس څخه: چې هغه يوسړی وليده چې ورپيده کله يې چې د رسول الله–صلی الله عليه و سلم– څخه د صفاتو په باره کې يو حديث واوريده د بد ګڼلو د وجه هغې لره، نو هغه وويل: څه شی داروي دوی لره؟ د محکم په اړه يې رقت او نرمي موي او د متشابه په اړه يې تباه کيږي. پای.

کله چې قريشو له رسول الله - صلی الله عليه وسلم - څخه واورېدل چې رحمن يادوي له هغو يې نته وکړه، نو الله د هغوی په اړه دغه ايت نازل کړ: او هغوی پر رحمن کفر کوي. د الرعد سورت: ۳۰ ايت.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د الله تعالی په نومونو او صفتونو کې په څه شي ايمان نه لرل د انکار په درجه کې.

دويمه: د الرعد د ايت تفسير.

دريمه: د هغه څه نه بيانول چې اورېدونکی نه پرې پوهيږي.

څلورمه: د هغه علت بيانول چې د الله او د هغه د رسول د دراوغجن ګڼلو لامل کيږي، که څه هم انکار کوونکي يې اراده نه وي کړې.

**پنځمه:** د ابن عباس وينا د هغه چا لپاره چې له دغو ښخه له يوشي ښخه نته کوي او دا چې هغه به تباه شي.



## باب دی د الله تعالی د وینا په اړه (چې فرمايي): هغوی د الله نعمت پېژني بيا يې انکار کوي او ډېری يې کافران دي.

د النحل سورت: ۸۳ ایت.

مجاهد ويلي د هغه معنا ده: دا د هغه سړي وينا ده چې وايي: دغه زما مال دی له پلرونو مې په ميراث وړی دی.

عون بن عبدالله وايي: هغوی وايي: که چېرې فلانی نه وای داسې به نه وای.

او ابن قتيبه وايي: هغوی وايي دغه زموږ د معبودانو په سپارښتنې سره.

ابوالعباس د زيد بن خالد له هغه حديث وروسته وايي چې پکې دي: بېشکه الله تعالی ويلي: زما له بندګانو يو پر ما مؤمن وي او بل کافر وي... حديث مخکې تېر شو.

او دا ډېری په کتاب او سنتو کې دي چې الله پاک د هغه چا بد بيانوي چې يوڅوک د هغه پېرزوينه بل چاته منسوبوي او له هغه سره څوک شريکوي.

ځينو سلفو ويلي: دا لکه د هغوی وينا: هوا ښه وه، کشتۍ بان ماهر و او دېته ورته هغه څه چې د ډېری خلکو پر ژبه جاري وي.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د نعمت د پېژندنې تفسير او د هغو انکار.

دويمه: د دې خبرې پېژندنه چې دا خبره د ډېريو پر ژبو جاري ده.

دريمه: د دغه وينا د نعمت په انکار سره نومول.

څلورمه: په زړه کې د دوو تکر شيانو يوځای کېدل.

★★★★★★★★★

## باب دی د الله تعالی د وینا په اړه (چې فرمايي): د الله لپاره سيالان مه نيسئ په داسې حال کې چې تاسو پرې پوهېږئ.

د البقرة سورت: ۲۲ ايت.

او له ابن عباس څخه د آيت په اړه راغلي دي: انداد: د هغه ميږي د پښو د کشاري څخه هم ډير پټ شرک دی چې په توره تياره شپه کې په تکه توره خويه ډبره روان وي.

او هغه دا دي چې ته ووايې: پر الله او ستا پر ژوند قسم اې فلانيه. او زما پر ژوند قسم.

او ووايې: که چېرې دغه سپی نه وای هرومرو به غله راغلي وای.

او که په کور کې بطه نه وای غله به راغلي وای.

او د يوسړي خپل ملګري ته دا وينا: چې الله وغواړي او ته يې وغواړې.

او د سړي وينا: که چېرې الله او فلانی نه وای، په هغې کې فلانی مه ورسره کړه وه، دا ټول په الله شرک کول دي. ابن ابي حاتم روايت کړی دی.

او له عمربن خطاب رضي الله عنهما څخه روايت چې نبي صلی الله عليه وسلم وفرمايل: چا چې پرته له الله پر بل چا لوړه (قسم) وکړه؛ نو هغه کفر او شرک وکړ: دغه حديث ترمذي روايت کړی او حسن يې بللی او حاکم صحيح بللی.

او ابن مسعود وايي: دا چې پر الله د درواغو قسم وکړم راته ښه دی تردې چې له هغه پرته په بل چا رښتيني قسم وکړم.

او له حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: داسې مه واياست: څه چې الله غواړي او فلاني غوښتي وي، خو داسې ووایاست، چې الله غوښتي وي او بيا فلاني. دغه حديث ابواؤد په صحيح سند سره روايت کړی دی.

او له ابراهیم نخعي څخه روایت دی چې هغه دا بدګڼل چې څوک ووایي: پر الله او پر تا پناه غواړم، او دا روا دي چې ووایي: پر الله بیا پرتا، هغه وویل: او چې ووایي: که الله بیا فلانی نه وای، او داسې مه وایاست: که الله او فلانی نه وای.

په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

لومړی: د انداد په اړه د البقرة د ایت تفسیر.

دویمه: صحابه هغه آیت چې د لوی شرک اړوند نازل شوی دی داسې تفسیروي چې هغه وړوکي شرک ته هم شامل دی.

دریيمه: له الله پرته پر بل چا لوړه (قسم) کول شرک دی.

څلورمه: دا چې کله څوک له الله پرته پر بل چا رښتیني لوړه وکړي؛ نو هغه له درواغو قسم څخه لویه ګناه ده.

پنځمه: د واو او ثم تورو ترمنځ توپیر.(واو:د معطوف او معطوف علیه تر مینځ جمعوالی افاده کوي او ثم تراخی(فاصله) افاده کوي) یا داسې لنډ ووایه:واو د مطلق جمع د پاره راځي او ثم د تراخی دپاره.

باب دی په بیان د هغه چا کې چې د الله په نوم ورته قسم وشي قناعت پرې نه کوي.

له ابن عمر - رضي الله عنهما - څخه روایت دی چې رسول الله - صلی الله علیه وسلم - فرمایلي دي: پر خپلو پلرونو لوړې (قسمونه) مه کوئ، څوک چې پر الله قسم کوي، رښتیا دې وایي، او د چا لپاره چې پر الله قسم وشي، پرې راضي دې شي، او څوک چې نه راضي کیږي؛ نه دی د الله د طرفه په هیڅ شي.

دغه حدیث ابن ماجه په حسن سند سره روایت کړی دی.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړۍ:** پر پلرونو له قسم کولو څخه منع.

**دويمه:** د چا لپاره چې پر الله قسم اخېستل کېږي هغه ته امر دی چې پرې راضي شي.

**درېيمه:** د هغه چا لپاره د سزا ګواښ چې نه پرې راضي کېږي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دغې وینا کې چې: څه الله او ته غواړې.

له قتیلة څخه روایت دی: چې یو یهودي نبي صلی الله علیه وسلم ته راغی هغه وفرمایل: تاسو شرک کوئ.

تاسو وایاست: څه چې الله او ته غواړې.

او تاسو وایاست: پر کعبه قسم.

نو نبي – صلی الله علیه وسلم– ورته امر وکړ چې کله غواړي نو داسې قسم دې کوي. د کعبې پر پالونکي قسم.

او داسې دې وایي څه چې الله غواړي او بیا ته غواړې.

دغه حدیث نسائي روایت کی او صحیح يې بللی دی.

او هغه لره له ابن عباس څخه هم روایت دی: چې یو سړي نبي صلی الله علیه وسلم ته وویل: څه چې الله او ته غواړې؛ نو هغه وفرمایل: آیا تا زه د الله لپاره سیال وګرځولم؟ څه چې یوازې الله غواړي.

او ابن ماجه د عائشې له مورنۍ ورور طفیل څخه روایت کوي وايي: ما داسې خوب ولیده چې ګواکې زه د یهودو پر یوه ډله راغلم.

ما وویل: تاسو ښه خلک یاست، که مو دا نه ویلای چې عزیر د الله زوی دی.

هغوی وویل: او تاسو هم ښه خلک یاست که مو دا نه ویلای: چې څه الله غواړي او څه محمد غواړي.

بیا پر یوه ډله نصاراو تېرېدم؛ نو ومې ویل: تاسو ښه خلک یاست که مو دا نه ویلای: چې مسیح د الله زوی دی.

هغوی وویل: او تاسو هم ښه خلک یاست که مو دا نه ویلای: چې څه الله غواړي او څه محمد غواړي.

کله چې سهار شو، نو څوک مې چې پر خپل خوب خبر کړل هغه مې خبر کړل.

بیا نبي صلی الله علیه وسلم ته راغلم، هغه مې پرې خبر کړ.

هغه وفرمایل: آیا څوک دې پرې خبر کړي دي؟

ما وویل: هو، هغه وویل:

نو نبي صلی الله علیه وسلم د الله حمد او ستاینه وکړه بیا یې وفرمایل: اما بعد.

پرته له شکه طفیل داسې خوب لیدلی، چې پر هغو یې له تاسو څوک چې خبر کړي هغه یې خبر کړي.

او دا چې تاسو داسې یوه وینا کوله چې دغه او دغه عذرونو زه منع کولم چې تاسې یې له ویلو منع کړم.

نو نور دا مه وایاست: چې څه الله غوښتي او څه چې محمد غوښتي وي، بلکې داسې وایاست: چې څه یوازې الله غوښتي وي.

په دې کې یوشمیر مسئلې دي:

لومړۍ: د یهودو په کوچني شرک سره پېژندګلوي.

دویمه: د انسان فهم کله چې هغه لره نفسي غوښتنه وي.

دریمه: د نبي – صلی الله علیه وسلم – دا وینا: چې آیا زه دې له الله سره سیال وګرځولم؟!، نو د هغه چا به څه حال وي چې وایي.

ما لره څه دي چې زه له تا څخه پرته پر بل چا پناه غوارم..له دغه وروسته دوه بیتونه؟

څلورمه: دا چې دغه له لوی شرک څخه ندی څکه خو یې ویلي: دغه او دغه مې منع کوي.

پنځمه: دا چې نېک خوبونه د وحې له دولونو څخه دي.

**شپږمه:** دا چې خوبونه کله د ځینو حکمونو مشروع کېدو لامل کیږي.

★★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې څوک زمانې ته ښکنځل وکړي؛ نو هغه الله ته اذیت ورکړ.

او د الله تعالی وینا: او هغوی وویل: نه دی مګر زموږ د دنیا ژوند چې ځینې مره کېږي او ځینې ژوندي کیږي او یوازې زمانه مو وژني، او هغوی لره څه پوهه نشته، هغوی یوازې ګمان کوي.

د الجاثیة سورت: ٢٤ آیت.

په صحیح کې ابوهریره له نبي - صلی الله علیه وسلم - څخه روایت کوي چې وېې فرمایل. الله تعالی وفرمایل: ابن آدم ماته اذیت رسوي، زمانې ته ښکنځل کوي، زه د زمانې پیداکوونکی یم، شپه او ورځ سره اړوم را اړوم.

او په یو روایت کې دي: زمانې ته ښکنځل مه کوئ؛ ځکه الله د زمانې خالق دی (په زمانه کې چې څه کیږي د هغې فاعل الله دی او د دهریو عقیده دا وه چې دا هر څه زمانه کوي نو زمانې ته یې کنځل کول او دا کنځل الله ته وو) اقلب اللیل و النهار په دې دلیل دی.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** زمانې ته له ښکنځلو څخه منع کول.

**دویمه:** د هغو د الله په آذیت سره نومول.

**دریمه:** د هغه په وینا کې فکر کول: چې الله زمانه دی(فاعل او خالق یې دی).

**څلورمه:** دا چې کله یوڅوک ښکنځل کوونکی وي، که څه هم له زړه څخه یې اراده نه وي کړې.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د قاضي القضاة او دېته ورته سره نومولو کې.

په صحیح کې ابوهریره رضي الله عنه له نبي صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې هغه وفرمایل: تر ټولو بد نوم د الله په وړاندې دا دی چې یوڅوک د پاچایانو په پاچا سره ونومول شي، پاچا یوازې الله دی.

سفیان ویلي دي: لکه: شاهان شاه.

او په یو روایت کې دي: چې هغه د قیامت په ورځ تر ټولو بد او خبیث سړی دی.

د هغه وینا (اخنع) معنا دا چې تر ټولو سپک.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

**لومړی:** د پاچایانو په پاچا سره له نومولو منع کول.

**دویمه:** دا چې د هغو په معنا وي لکه سفیان چې ویلي:

**دریيمه:** په دغه او دېته ورته شیانو کې د سختۍ لپاره هوښیارتیا، سره لدې چې زړه د هغو د معنا اراده نه وي کړې.

**څلورمه:** پردې پوهېدل چې دغه د الله پاک د درناوي له امله دي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د احترام د نومونو د الله تعالی کې او د دی احترام د وجه نوم بدلول.

له ابوشریح څخه روایت دی: چې د هغه کنیت ابوالحکم و، نو نبي صلی الله علیه وسلم ورته وویل: پرته له شکه یوازې الله پریکړه کوونکی دی او یوازې هغه لره پریکړه ده.

هغه وویل: زما قوم چې کله د څه په اړه اختلاف کوي، ماته راځي، زه د هغوی ترمنځ پریکړه کوم، نو دواړه اړخونه پرې راضي شي.

هغه وفرمایل: څومره ښه، ستا بچیان څوک دي؟

ما وویل: شریح، مسلم او عبدالله.

هغه وفرمایل: ترټولو مشر یې کوم یو دی؟

ما وویل: شریح.

هغه وفرمایل: نو ته ابوشریح یې. دغه حدیث ابوداؤد او نورو روایت کړی دی.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د الله د نومونو او صفتونو درناوی، که څه هم د معنا اراده یې نه وي شوې.

دویمه: د دغه له امله د نوم بدلول.

دریمه: تر ټولو مشر بچی د کنیت لپاره غوره کول.

★★★★★★★★

## باب دی د هغه چا په اړه چې پر داسې یو څه ملنډې ووهي چې د الله، قران او رسول یاد پکې وي.

او دا وینا د الله تعالی: او که له هغوی وپوښتې، هرومرو به وايي موږ خو یوازې توکې او لوبې کولې، ورته ووايه: آیا پر الله د هغه پر آیتونو او رسول یې تاسو ملنډې وهئ. د التوبة سورت: ٦٥ ایت

له ابن عمر، محمد بن کعب، زید بن اسلم او قتادة څخه روایت دی، له هغوی د ځینو حدیث د ځینو په حدیث کې داخل دی: دا چې یوسړي د تبوک په غزا کې وویل: موږ د خپلو دغو قاریانو غوندې زیات د خېټو مینه وال، د ژبو درواغجن او له دښمن سره د مخامخ کېدو پر مهال زیات ډارن نه دي لیدلي- د هغه موخه رسول صلی الله علیه وسلم او د هغه قاریان صحابه وو، نو عوف بن مالک ورته وویل: درواغ دې وویل او ته پرته له شکه منافق یې، زه هرومرو رسول الله صلی الله علیه وسلم خبروم.

نو عوف رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ورغی ترڅو یې خبر کړي، خو هغه قرآن تر هغه مخکې شوی و.

نو دغه سړی رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی په داسې حال کې چې رحلت یې حمتوالی نیولی و او پر خپله سپرلۍ سپور شوی و.

نو ویې ویل: اې د الله رسوله! موږ یوازې توکې کولې هسې د سفر خبرې مو کولې ترڅو د لارې ستړیا پرې وباسو، ابن عمر وايي: ګواکې زه هغه ته ګورم چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اوښې جلب(پړی) یې نیولی او وايي: موږ یوازې توکې او لوبې کولې، خو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وايي. آیا تاسو پر الله، د هغه پر آیتونو او رسول یې ملنډې وهئ، عذر مه کوئ، تاسو له ایمان وروسته کفر کړی دی. نه یې هغه ته کتل او نه یې څه پرې زیاتول.

په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

**لومړی:** چې هغه لویه خبره ده – چې چا پر دغه ملنډې ووهلې هغه کافر دی.

**دویمه:** دا چې دغه د هغه آیت تفسیر دی چې چا دا کار وکړ هر څوک چې وي.

**درییمه:** د چغل خورۍ او د الله او د هغه رسول لپاره د نصیحت او ښهکنې تر منځ توپیر.

**څلورمه:** د هغې بخښنې چې الله يې خوښوي او د الله پر دښمنانو د سختۍ ترمنځ توپیر،

**پنځمه:** ځینې عذرونه داسې دي چې په کار نده چې ودې منل شي.

★★★★★★★★

**باب دی په بیان د الله تعالی د وینا کې: او که موږ هغه ته زموږ لخوا لوریینه ور وڅکو وروسته تردې چې کړاو ورته رسېدلی وي، هرومرو به وايي، دا زما لپاره دی او زه ګومان نه کوم چې قیامت رامنځته کېدونکی دی، او که خپل پالونکي ته ور وګرځول شم(ستا په ګمان)، د هغه په وړاندې به هم ما لره غوره برخه وي، موږ به هرومرو هغه خلک چې کفر یې کړی پر هغه څه خبر کړو چې هغوی کړي دي او هرومرو به هغوی ته سخته سزا ور وڅکو.**

د فصلت سورت: ۵۰ آیت.

**مجاهد وايي:** دا زما د عمل له امله او زه یې مستحق یم.

**او ابن عباس وايي:** چې د دې څخه مراد هغه څوک دی چې وايي دا زما کمال وو.

**او د هغه وینا:** هغه وايي: ماته یوازې زما د پوهې له امله راکړل شوي دي. قتاده وايي: زما د هغې پوهې له امله چې د بېلابېلو کسبونو په اړه یې لرم.

**او نورو ویلي دي:** د الله د هغه علم له امله چې زه یې وړ یم.

**او دغه د مجاهد د وینا معنا ده:** ماته د شرف له امله راکړل شوي دي.

**له ابوهریره څخه روایت دی چې هغه له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اورېدلي چې فرمایل یې:** دا چې درې کسان د بنی اسرائیلو څخه وو: یو پیس(برګي مرض والا)، بل پک (کنجی) او بل ړوند:

نو الله د هغوی ازمویل وغوښتل، هغوی ته یې یوه پرښته ولېږله.

هغه پرښته پیس (پمن) ته راغله ورته یې وویل: تاته ترټولو غوره شی څه دي؟.

هغه وویل: ښکلی رنګ، ښکلی پوستکی چې له ما څخه مې هغه عیب یوسي چې خلک یې بد ګڼي زما څخه.

هغه وايي: نو هغې پرې لاس راکش کړ، چې له هغه څخه یې بدوالی له منځه ولاړ؛ نو ښکلی رنګ او ښکلی پوست یې ورکړ.

هغې وویل: تاته ترټولو غوره مال څه دی؟

هغه وویل: اوښان او که غویان- اسحاق ته شک دی- نو لس میاشتنۍ بلاربې اوښانې یې ورکړې.

بیا یې ورته وویل: الله دې برکت درته پکښې واچوي.

هغه وايي: بیا پک ته راغی.

هغه ته یې وویل: تاته ترټولو غوره شی څه دی؟

هغه وویل: ښکلي وېښتان، چې له ما هغه څه یوسي چې خلکو پرې بد کتلی یم.

نو هغه یې هم مسح کړ، له هغه یې عیب ولاړ او ښکلي وېښتان یې ورکړل.

هغه ته یې وویل: کوم مال دې ډېر خوښیږي؟

هغه وویل: غویان او که اوښان، نو هغه ته یې بلاربې غواوې ورکړې.

بیا یې ورته وویل: الله دې برکت درته پکښې واچوي.

بیا ړانده ته راغی.

نو ویې ویل: ستا ترټولو زیات څه شی خوښیږي؟

هغه وویل: دا چې الله مې بینایي بېرته راکړي، نو خلک پرې ووینم، هغه یې هم مسح کړ چې الله هغه ته بینایي وروګرځوله.

هغه ته یې وویل: کوم مال دې ډېر خوښیږي؟

هغه وویل: پسونه.

نو هغه ته مېږې او پسونه ورکړل شول چې هغو بیا بچیان راوړل.

چې د دغه یوه شپله اوښان وو، د هغه یوه شپله غواوې وې، او د دغه بیا یوه شپله مېږې او پسونه وو.

هغه واېي: بیا هغه په خپل شکل او حالت کې پیس (پمن) ته راغی ورته وېې ویل: بې وزله، مسافر یم په دغه سفر کې مې هرڅه تمام شول، نن ما لره هیڅ هیله نشته پرته له الله او بیا له تا څخه.

د هغه په نوم چې ښکلې رنګ، ښکلې پوست او مال یې درکړي یو اوښ درڅخه غواړم چې خپل سفر ته پرې ورسېږم.

هغه وویل: حقوق بېخي زیات دي.

نو هغه ورته وویل: داسې ښکاري لکه زه دې چې نه پېژنم، آیا ته پیس (پمن) نه وې خلکو بد درته ویل، بې وزله وې، الله مال درکړ.

هغه وویل: ما دغه مال له خپلو لویانو او لویانو څخه په میراث وړی دی.

هغه وویل: که ته درواغجن وې؛ نو الله دې هغه حال ته وګرځوه چې پرې وې.

هغه واېي: بیا پک (ګنجي) ته په خپل صورت او شکل کې راغی.

هغه ته یې همغه ډول وویل، کوم یې چې دغه ته ویلي و، هغه هم همغه ډول ځواب ورکړ لکه دغه چې ورکړی و.

نو هغه ورته وویل: که ته درواغجن وې، الله دې هغه حال ته وګرځوه چې پرې وې.

هغه واېي: بیا ړانده ته په خپل شکل او صورت کې راغی ورته وېې ویل: بې وزله او مسافر سړی یم، په سفر کې مې هرڅه له لاسه ورکړل، نو له الله او بیا له تا پرته بله هیڅ وسیله نه لرم.

د هغه ذات په نوم یو پسه در څخه غواړم چې تاته یې سترګې بېرته درکړې، تر څو په خپل سفر کې ځان ځای ته پرې ورسوم.

هغه وویل: زه ړوند وم، الله مې لید را وکرځاوه، نو څومره چې غواړې وایې خله، او څومره چې غواړې پرې یې ږده، پر الله قسم نن دې چې د الله لپاره هرڅه واخېستل نه دې ملامتوم.

هغه ورته وویل: خپل مال دې درسره وساته، تاسو یوازې و ازمویل شوئ، الله له تا څخه راضي دی او پر ملګرو دې په غصه دی.

(٤) هغوی دواړو تخریج کړی دی.

په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

لومړی: د آیت تفسیر.

دویمه: د دغې وینا څه معنا ده چې (هرومرو به وایي دغه زما لپاره دي).

درېیمه: د دغې وینا معنا څه ده: (ما ته خو یوازې زما د پوهې له امله راکړل شوي دي).

څلورمه: پدغه کیسه کې څه عجیب لوی پندونه دي.

★★★★★★★★

**باب دی په بيان د الله تعالی د دې وينا کې: خو کله چې ښه بچی يې ورکړ، دواړو په هغه ورکړه کې لده سره نورشريکان وګڼل؛ نو الله له هغو ډېر اوچت دی چې دوی يې ورسره شريکوي.**

د الأعراف سورت: ۱۹۰ ایت

ابن حزم وايي: ټول علماء د هر داسې نوم په اړه په يوه خوله دي چې د الله څخه په غير بل چا ته پکې د عبادت نسبت شوی وي چې دغه نوم به حرام وي ، لکه عبدعمرو، عبدالكعبة او دېته ورته نومونه نو د عبدالمطلب به څه حال وي.

او د آيت په اړه له ابن عباس څخه روايت دی وايي: کله چې آدم له هغې سره کوروالی وکړ، هغه بلاربه شوه، نو هغوی دواړو ته شيطان راغی، ورته وې ويل: زه ستاسو هغه ملګری يم چې له جنته مې و ايستلئ، اوس به مې هرومرو يا پيروي کوئ او يا زه هغه لره داسې ښکر ورکوم چې له خېټې دې راووځي او درخيري يې کړي.

او زه هرومرو او هرومرو کوم؛ هغوی يې وېرول.

هغه باندې عبدالحارث نوم کيږدئ.

هغوی دواړو نه وکړه چې د هغه پيروي وکړي؛ نو مړ را ووت.

بيا حامله شوه، نو هغه ورته راغی، هغه مخکېنی وينا غوندې يې ورته وويل؛ هغوی دواړو بيا د هغه له پيروی نه وکړه؛ نو بيا يې بچی مړ پيدا شو.

بيا حامله شوه، هغه بيا ورته راغی د همغه څه يادونه يې ورته وکړه، هغوی دواړو د زوی مينې دېته اړ ايستل چې عبد الحارث نوم پرې کيږدي.

له همدې امله د الله وينا ده: چې هغوی دواړو هغه لره شريکان ونيول په هغه څه کې چې هغه (شيطان) يې په اړه ورته راغلی و. ابن ابي حاتم روايت کړی دی.

او هغه لره له قتادة څخه په صحيح سند سره روايت دی وايي: د هغه په پيروی کې شريکان دي، نه په عبادت کې.

او هغه لره په صحیح سند سره له مجاهد څخه د الله د وینا په اړه روایت دی: (چې که ته موږ ته صالح اولاد راکړې) هغه وایي: (هغوی دواړه پردې ویدار شول چې داسې نه چې انسان نه وي.

او همدغه معنا یې له حسن، سعید او نورو څخه بیان کړې ده.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د هر داسې نوم اېښودلو نارواوالی چې له الله پرته د غیرالله د لمانځلو معنا ورکوي.

دویمه: د ایت تفسیر.

دریيمه: دا چې دغه یوازې د نوم په اېښودلو کې شرک و، حقیقي معنا یې مراد نه وه.

څلورمه: دا چې د الله لخوا چاته د سمې لور ورکړه له نعمتونو څخه ده.

پنځمه: د سلفو لخوا د پیروی او عبادت په شرک کې د توپیر بیانول.

★★★★★★★★

## باب دی د الله تعالی د وینا په اړه (چې فرمایي): او الله لره ښکلي نومونه دي؛ نو پرې را ویې بولئ، او هغه کسان پرېږدئ چې د هغه په نومونو کې کوږوالی لټوي.

د الاعراف سورت: ۱۸۰ ایت

ابن ابي حاتم له ابن عباس څخه بیان کوي چې (د هغه په نومونو کې الحاد کوي) یعني شرک کوي.

او له هغه څخه روایت دی: لات نوم یې له اله څخه نوملی او عُزی یې له عزیز څخه.

او له اعمش څخه روایت دی: په هغو کې هغه څه داخلوي چې له هغو څخه ندي.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: د نومونو اثبات.

دویمه: دا چې ښکلي نومونه دي.

دریيمه: پر هغو نومونو یې د رابللو امر.

څلورمه: له ناپوهانو او ملحدینو سره د معارضې پرېښودل.

پنځمه: په هغو کې د الحاد تفسیر.

شپږمه: د هغه چا لپاره د سزا ژمنه چې الحاد کوي.

★★★★★★★★

## باب دی په بيان د دې کې چې (السلام على الله) به نه واياست.

په صحيح کې له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی وايي: موږ چې کله له نبي – صلى الله عليه وسلم – سره په لمانځه کې وو، ومو ويل: پر الله دې د هغه د بندګانو لخوا سلام وي، پر فلاني او فلاني دې سلام وي، نو نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: داسې مه واياست چې پر الله دې سلام وي، بېشکه الله په خپله سلام دی.

په دې کې يوشمېر مسئلې دي:

لومړی: د سلام تفسير.

دويمه: دا چې دا تحيه ده.

درېيمه: دا چې دا د الله لپاره کارول يې په کار نه دي.

څلورمه: د دغې علت بيانول.

پنځمه: هغوی ته هغه ډول سلام ښوونه چې د الله تعالى له شان سره ښايي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دغې وینا کې چې څوک ووایي: اې الله ماته بخښنه وکړه که دې خوښه وي.

په صحیح کې له ابوهریره څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: له تاسو دې یو هم دا نه وایي: چې اې الله ما وبخښه که غواړې، اې الله پر ما لورېینه وکړه که دې خوښه وي، په غوښتنه کې دې ټینګ هوډ وکړي، ځکه الله لره کوم اړ ایستونکی نشته.

او د مسلم په روایت کې دي: خپل شوق مینه دې لویه ولري، ځکه له الله هیڅ شی هم لوی نه دي چې ور کوي یې.

په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

لومړی: په دعاء کې له استثناء څخه منع.

دویمه: د دغې علت بیانول

دریمه: د هغه وینا: چې خپل حاجت دې ښه په کلکه و غواړي.

څلورمه: د رغبت (مینه شوق) لویوالی.

پنځمه: د دغه امر علت بیانول.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې څوک دې نه وایي: زما بنده او زما بندګی.

په صحیح کې له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: له تاسو دې هیڅوک هم داسې نه وایي: چې خپل رب ته خواړه ورکړه، خپل رب ته اودس وکړه، داسې دې ووایي: زما سردار او زما بادار، او له تاسو دې داسې څوک نه وایي چې زما بنده او زما بندګي، داسې دې ووایي: زما مریی، مینځه او غلام.

### په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

**لومړی:** لدې وینا منع: زما بنده او زما بندګی.

**دویمه:** بنده دې داسې نه وایي: زما پالونکیه، او ندې داسې ورته ویل کیږي: خپل رب ته دې خواړه ورکړه.

**دریېمه:** لومړي ته د دغې وینا ښوونه: چې زما مریي، زما وینځه او زما غلام.

**څلورمه:** دویم ته د دغې وینا ښوونه: زما بادار او مولا.

**پنځمه:** موخې ته پام راړول: چې هغه د توحید ثابتول دي آن په الفاظو کې هم.

★★★★★★★★

## باب دی پدې باره کې چې چا د الله په نوم غوښتنه وکړه نو هغه به تش لاس نه رخصتيږي.

له ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: چا چې پر الله پناه وغوښته، نو پناه ورکړئ، او چا چې پر الله غوښتنه وکړه، نو څه ورکړئ، او چا چې بلنه درکړه؛ نو بلنه يې ومنئ، چا چې ښېګڼه درسره وکړه، نو بدله يې ورکړئ، که مو داسې څه ونه موندل چې بدله يې پرې ورکړئ؛ نو هغه لره دعاء وکړئ ترڅو داسې ښکاره شئ چې تاسو يې بدله ورکړه.

دغه حدیث ابو داؤد او نسائي په صحیح سند سره روایت کړی دی.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** هغه چا ته پناه ورکول چې پر الله پناه وغواړي.

**دويمه:** هغه چا ته څه ورکول چې د الله پر نوم غوښتنه وکړي.

**دريمه:** د بلنې منل.

**څلورمه:** د ښو بدله ورکول.

**پنځمه:** دا چې دعاء هم د هغه چا لپاره بدله کېدای شي چې لدې پرته بل څه ونه لري.

**شپږمه:** د هغه دا وينا چې: داسې ښکاره شئ لکه چې تاسو يې بدله ورکړې وي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې د الله په روی(مخ) له جنت پرته بل څه نه غوښتل کیږي.

له جابر څخه روایت دی وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: د الله په روی له جنت پرته بل څه نه غوښتل کیږي. ابوداؤد روایت کړی دی.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** له دې څخه منع چې د الله په روی له لویو موخو پرته بل څه نه غوښتل کیږي.

**دویمه:** د الله لپاره د وجه صفت ثابتول.



## باب دی په بیان د (لو):که چیرته کې.

او د الله تعالی وینا: هغوی وایي که چیرته زمونږ اختیار وای؛ نو دلته به نه وای وژل شوي.

د آل عمرات سورت: ۱۵٤ ایت.

او د هغه وینا: هغه کسان چې خپلو وررونو ته یې وویل او ناست وو، که چیرې هغوی زمونږ پیروي کړې وای نه به وای وژل شوي.

د آل عمرات سورت: ۱٦ ایت.

په صحیح کې له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د هغه څه په اړه حرص کوه چې ګټه درته رسوي، پر الله مرسته غواړه او هیڅکله مه عاجزه کېږه، که څه در ورسېدل نو داسې مه وایه: چې که مې داسې کړي وای داسې به شوي وای، بلکې ووایه: الله په تقدیر کې لیکلي و او څه یې چې غوښتل ویې کړل، ځکه (لو) د شیطان عمل پرانیزي.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړی: په آل عمران کې د دوو آیتونو تفسیر.

دویمه: د (لو) له وینا څخه په ډاګه منع کول کله چې څه در ورسیږي.

دریيمه: د مسئلې علت په دې سره بیانول چې د شیطان عمل پرانیزي.

څلورمه: ښکلې وینا ته لارښوونه کول.

پنځمه: پر الله د پناه غوښتلو سره.د هغه څه په اړه د حرص امر چې ګټور وي.

شپږمه: د دغه له ضد څخه منع چې هغه عجز دی.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د نهی کې له کنځلو څخه باد ته.

**له ابي بن كعب رضي الله عنه څخه روایت دی: چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:** هواته ښکنځل مه کوئ، کله چې مو داسې څه ولیدل چې نه مو خوښېدل؛ نو ووایاست: اې الله! موږ له تا څخه د دغې هوا خير غواړو، او هغه خير چې پکې دی، او د هغه خير چې امر راته پرې شوی دی، او له تا څخه د دغې هوا له شر څخه پناه غواړم، او کوم شر چې پکې دی او د کوم شر په اړه چې امر راته پرې شوی دی. **دغه حدیث ترمذي صحيح بللی دی.**

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** هوا ته له ښکنځلو منع.

**دویمه:** ګټورې وینا ته لارښوونه، کله چې انسان هغه څه ویني چې بد يې ګڼي.

**دریيمه:** دې خبرې ته لارښوونه چې هغې (هوا) ته امر شوی دی.

**څلورمه:** دا چې هغې ته کله په خير او کله هم په شر امر کيږي.

★★★★★★★★

**باب دی د الله تعالی د وینا په اړه (چې فرمایي): هغوی پر الله هم ناروا ګمانونه کول، هماغه د جاهلیت ګمان، دوی وایي آیا د دې کارڅه واك موږ لره شته؟ ورته وایه ریښتیا چې کار ټول الله لره دی خو دوی په سینو کې څه (خبرې) پټې ساتي هغه چې تاته یې نه څرګندوي، وایي که په دې کار کې زموږ څه (واك) وای نو دلته به نه وژل کېدو، ورته وایه که تاسو په خپلو کورونو کې هم وای نو چاته چې وژل ټاکل شوي و د خپلې مرینې ځای ته به راوتلي وای، او (دا پېښه) د دې لپاره چې الله و ازمویي څه مو چې سینو کې دي او هغه (خبرې) راښکاره کړي چې مو په زړونو کې دي او الله د سینو په شته ښه پوه دی.**

د آل عمران سورت: ١٥٤ ایت.

او د هغه وینا: هغوی چې پر الله د بدی ګمان کوونکي دي،پر هغوی دې بدې حادثې وي، او الله پر هغوی غضب کړی، رټلي یې دي او جهنم یې ورته چمتو کړی او ډېر بد د ورتلو ځای دی.

د الفتح سورت: ٦ ایت

ابن قیم د لومړي ایت په اړه ویلي دي: دغه ګمان په دې سره تفسیر شوی، چې هغه پاک ذات له خپل استازي سره مرسته نه کوي او دا چې د هغه امر به کمزوری شي، او په دې سره تفسیر شوی چې هغه ته څه ورسېدل هغه د الله په تقدیر او حکمت سره نه و، نو د هغه له حکمت، تقدیر او د هغه د رسول د کار په نه بشپړېدو سره تفسیر کړل شوی، او دا چې هغه پر خپل ټول دین برلاسی کړي، دا هغه بد ګمان دی کوم چې منافقانو او مشرکانو د فتحې په سورت کې کولو، او دا ځکه بد ګمان و چې له الله سره، د هغه له حکمت، ستاینې او ریښتینې ژمنې سره نه ښاییدلو.

نو چا چې دا ګومان وکړ چې باطل به پر حق په ثابت ډول برلاسی کیږي له هغه سره حق کمزوری شي، او یا یې لدې څخه نټه وکړه چې هغه د الله په قضاء او تقدیر ندي روان او یا یې له دې انکار وکړ چې د هغه تقدیر دې د کوم داسې لوی حکمت له مخې وي چې ستاینه یې پرې وشي، بلکې دا ګومان یې وکړ چې دا یوازې د یوې خوښې پر بنسټ دی، نو دا د هغو

خلکو ګومان دی چې کفر یې کړی دی، چې د دغو کافرانو لپاره د اور کنده ده او ډېری خلک پر الله همداسې بدګمان کوي چې تر هغوی پورې ځانګړې ده او پر نورو هم همداسې ګومان کوي، له دې څخه یوازې هغه څوک خوندي دی چې الله، د هغه نومونه او صفتونه او د هغه حکمت او ستاینې لامل یې پېژندلی وي.

نو د ځان لپاره هوښیار نصیحت کوونکی دې دغه ته پاملرنه وکړي او الله ته دې توبه وباسي او پر خپل پالونکي له بدګومانۍ څخه دې بخښنه وغواړي.

او که ته ولټوې هغه څوک چې لټوې یې، نو وبه وینې چې هغه د تقدیر په اړه له ضد او ملامتیا څخه کار اخلي او وایي به چې دا باید داسې او داسې وای، کموونکی او زیاتوونکی به وي؛ نو خپل ځان وګوره چې آیا ته سم یې؟

که له دغې څخه خوندي وې، له لویې ګناه څخه خوندي یې او که داسې نه وې؛ نو فکر نه کوم چې نجات موندونکی به وې.

پدې کې یو شمېر مسئلې دي:

لومړۍ: د آل عمران د آیت تفسیر:

دویمه: د الفتح سورت د آیت تفسیر.

دریيمه: د دې خبر ورکول چې دا ډېر ډولونه لري منحصر نه دي.

څلورمه: دا چې له دغه څخه یوازې هغه څوک خوندي کېدلای شي چې د الله نومونه، صفتونه او ځان یې پېژندلی وي.

او ابن عمر وايي: پر هغه ذات قسم چې د ابن عمر روح يې په لاس کې دی، که چېرې د هغوی د يوه لپاره د احد د غره په اندازه سره زر وي، بيا يې د الله په لار کې ولګوي، الله به يې ترې ونه مني، تر څو پر تقدير ايمان ونه لري، بيا يې د نبي صلی الله پر وينا استدلال وکړ. ايمان دېته وايي چې پر الله، پرېښتو، کتابونو او رسولانو يې، د آخرت په ورځ ايمان راوړې، او د هغه لخوا پر خير او شر باور ولرې. دغه حديث مسلم روايت کړی دی.

او له عبادة بن صامت څخه روايت دی چې هغه خپل زوی ته وويل: ای بچوريه! پرته له شکه هيڅکله به تر هغه د ايمان خوند ونه څکې تر څو پردې پوه شې چې څه درته رسېدلي هغه خطاء کېدونکي نه و او له څه څخه چې خطا شوی يې، هغه نه شي درته رسېدلی، دا مې له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي چې داسې يې فرمايل: پرته له شکه لومړی څه چې الله پيدا کړي هغه قلم دی؛ نو هغه ته يې وويل: وليکه، هغه وويل: اې زما پالونکيه څه وليکم؟

هغه وويل: د قيامت تر رامنځته کېدو د ټولو شيانو تقديرونه وليکه.

اې بچوريه! ما له رسول الله صلی الله عليه وسلم څخه اورېدلي چې فرمايل يې: څوک چې له دغه پرته پر بله عقيده مړ شي هغه له مونږ څخه نه دی.

او په يو روايت کې له احمد څخه داسې راغلي: پرته له شکه لومړی څه چې الله پيدا کړل هغه قلم دی، بيا يې ورته وويل: وليکه، نو په دغه ساعت کې پر هغه څه روان شو چې د قيامت تر ورځې پېښيږي.

او يو روايت له ابن وهب څخه دا دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چې د تقدير پر خير او شر ايمان نه لري الله به يې په اور وسوځوي.

په مسند او سنن کې له ابن ديلمي څخه روايت دی وايي: زه ابي بن کعب ته راغلم، ومې ويل زما په زړه کې د تقدير په اړه څه دي، نو لږ څه راته ووايه کېدای شي الله مې له زړه هغه څه لېرې کړي، هغه وويل: که د احد د غره په اندازه سره زر ولګوې، الله به يې تر هغه قبول نه

کړي ترڅو پر تقدیر ایمان ونه لري، او پردې پوه نه شي چې څه درته رسېدل هغه به در څخه خطا نه شي او څه چې در څخه خطا کېدل هغه به درته ونه رسیږي او که له دې پرته پر بله عقیده مړ شوې ته به دوزخي وې؟

هغه وايي: بیا زه عبدالله بن مسعود، حذیفه بن یمان او زید بن ثابت ته راغلم، تولو همدغه ډول له نبي صلی الله علیه وسلم څخه راته وویل: دا حدیث صحیح دی حاکم په خپل صحیح کې روایت کړی دی.

په دې کې یوشمېر مسئلې دي:

**لومړی:** پر تقدیر د ایمان د فرضوالي بیان.

**دویمه:** پر هغو د ایمان د کیفیت بیان.

**دریيمه:** د هغه چا د ایمان له منځه تلل چې ایمان نه پرې لري.

**څلورمه:** پردې خبرول چې هیڅوک به تر هغه د ایمان خوند ونه مومي تر څو یې پر تقدیر ایمان نه وي راوړی.

**پنځمه:** د لومړي هغه څه یادونه چې الله پیدا کړي.

**شپږمه:** دا چې له دغه ساعت څخه بیا د قیامت تر رامنځته کېدو پورې قلم جاري وي.

**اوومه:** د هغه - صلی الله علیه وسلم - له هغه چا څخه بېزاري چې پر تقدیر ایمان نه لري.

**اتمه:** د شبهاتو د له منځه وړلو لپاره د سلفو عادت چې له علماوو څخه به یې پوښتنه کوله.

**نهمه:** دا چې علماوو داسې ځواب ورکړ چې شبهه له منځه وړي، داسې چې خبره یې یوازې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته منسوبه کړه.

★★★★★★★★

## باب دی په بيان د تصوير اخيستونكو كې (هغه څوک چې عكسونه وباسي او يا يې اخلي).

له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی وايي: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله تعالى فرمايي: تر هغه زيات ظالم به څوک وي چې څوک زما د مخلوق غوندې خلک جوړوي، نو هغوی دې يوه ذره او يا يوه دانه پيداکړي او يا دې يوه وربشه پيدا کړي. هغوی دواړو(بخاري او مسلم) روايت کړی دی.

او هغوی دواړه له عائشې رضي الله عنها څخه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: د قيامت په ورځ به ترټولو سخته سزا د هغه چا لپاره وي چې زما د مخلوق مشابه شكلونه(عكسونه) جوړوي.

او هغوی دواړه له ابن عباس څخه روايت کوي: چې ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واورېدل چې فرمايل يې: هر انځورګر په اور کې دی، د هر انځور په بدل کې چې جوړ کړی يې دی د هغه لپاره يو روح ورکول کيږي چې په دوزخ کې به پرې ځورول کيږي.

او هغوی دواړه له هغه څخه مرفوعا روايت کوي.

چا چې په دنيا کې کوم انځور جوړ کړ، هغه به مکلف کړل شي ترڅو روح پکې پوکړي، خو هغه به پکې پوکوونکی نه وي.

او مسلم له ابو الهياج څخه روايت کوي وايي: ماته علي وويل: آيا د هغه څه لپاره دې ونه لېږم چې رسول االله صلى الله عليه وسلم زه ورته لېږلی وم؟ دا چې هيڅ انځور داسې پرې نه ږدې مګر دا چې ړنګ يې کړې اونه لوړ شوی قبر مګر برابر يې کړې.

په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

لومړی: د انځورګرانو په اړه ډېره سختي کول.

**دویمه:** پر لامل یې تنبیه کول چې هغه د الله ادب پرېښودل دي، لکه چې وايي: تر هغه به څوک ډېر ظالم وي چې زما د مخلوق غوندې خلک جوړوي.

**دریمه:** د الله پر قدرت او د هغوی پر عاجزۍ تنبیه، د هغه د وینا له مخې: نو یوه ذره دې پیدا کړي او یا دې یوه دانه او یوه وربشه پیدا کړي.

**څلورمه:** دا خبره په ډاګه کول چې هغوی ته به تر ټولو خلکو سخته سزا وي.

**پنځمه:** دا چې الله به د هر انځور په شمېر نفس ورته پیدا کوي او بیا به په دوزخ کې انځورګر ته پرې سزا ورکوي.

**شپږمه:** دا چې هغه به پکې د روح په پوکولو مکلف کړل کیږي.

**اوومه:** کله که ومونډل شي نو په ړنګولو یې امر کول.



## باب دی په بیان د هغه څه کښې چې د ډېرو قسمونو په اړه راغلي دی.

او د الله تعالی وینا: خپلې لوړې مو وساتئ.

د المائدة سورت: ۸۹ ایت

له ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی وايي: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل چې فرمایل يې: اخیستلو خرڅولو کې په درواغو قسم کول (تیک ده څه دنیا به وګټې)، لیکن د کسب برکت له منځه وړي.

هغوی دواړو (بخاري او مسلم) روایت کړی دی.

او له سلمان څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: درې کسان دي چې الله به له هغوی سره د رحمت خبرې ونه کړي، هغوی به پاک نه کړي او هغوی لره به دردوونکې سزا وي، زوړ زاني، بې وزله کبرجن او هغه سړی چې الله يې سوداګریز مال داسې ګرځولی وي چې له قسم پرته يې نه اخلي او نه يې پلوري.

دغه حدیث طبراني په صحیح سند سره روایت کړی دی.

او په صحیح کې له عمران بن حصین رضي الله عنه څخه روایت دی وايي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: زما غوره امت زما پېړۍ ده بیا چې ورپسې دي، بیا چې په هغوی پسې دي، عمران وايي: ماته یاد نه دي چې له خپلې پېړۍ وروسته يې دوه ځلې او که درې ځلې یادونه وکړه، بیا به له تاسو وروسته داسې قوم وي چې شاهدي به ورکوي خو شاهدي به ترې غوښتل کیږي نه، خیانت به کوي او باور به پرې نه کیږي، نذرونه به مني پرځای کوي به يې نه او په هغوی کې به چاغ والی زیات شي.

او همدغه کې له ابن مسعود څخه روایت دی چې نبي صلی الله علیه وسلم وفرمایل: غوره خلک زما د پېړۍ دي، بیا چې په هغوی پسې دي، بیا په هغوی پسې، بیا به داسې خلک راشي چې له هغوی به د یو شاهدي تر قسم (لوړې) مخکې کیږي او قسم به يې تر شاهدۍ.

ابراهیم وايي: هغوی به موږ پر شاهدۍ او تړون وهلو کله چې موږ کوچنیان وو.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** د لوړو(قسمونو) د ساتنې سپارښتنه.

**دویمه:** پردې خبره خبرول چې قسم سامان تباه کوي او برکت له منځه وړي.

**دریيمه:** د سختې سزا ژمنه د هغه چا لپاره چې له قسم پرته نه پېر او نه پلور کوي.

**څلورمه:** دې ته پاملرنه کول چې څومره د ګناه لامل کم وي همدومره هغه ګناه لویه ګڼل کېږي.

**پنځمه:** د هغو خلکو بد بیانول چې د لوړو له غوښتنې پرته لوړې کوي.

**شپږمه:** د نبي صلی الله علیه وسلم لخوا د دریو یا څلورو پېړیو ستاینه او له هغوی وروسته چې څه پېښیږي د هغو یادونه.

**اوومه:** د هغو کسانو بد بیانول چې له شاهدۍ غوښتلو پرته شاهدي ورکوي.

**اتمه:** دا چې پخوانیو به پر شاهدۍ او ژمنه کوچنیان وهل.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې د الله د ذمې او د هغه د نبي د ذمې په اړه راغلي دي.

**او د هغه وینا:** او له الله سره کړې ژمنه مو پوره کړئ کله مو چې ژمنې وکړې او لوړې د هغو له ټینګښت وروسته مه ماتوئ، په داسې حال کې چې الله مو پر ځانونو کفیل ګرځولی دی، پرته له شکه الله پر هغه څه پوهیږي چې کوئ يې. **د النحل سورت: ۹۱ ایت**

**او له بریده څخه روایت دی وایي:** کله به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم پر کوم لښکر او ډله امیر وټاکلو د ځان په اړه به یې له الله څخه د وېرې، او کوم مسلمانان به چې ورسره وو د ښېګڼې سپارښتنه کوله، نو فرمایل به یې. د الله په لار کې د الله پر نوم له هغو خلکو سره چې پر الله یې کفر کړی و جنګېږئ، جهاد وکړئ خو له بریده مه اوړئ او دوکه مه کوئ، مثله مه کوئ (د وژل شویو شکلونه په سترګو ایستلو، غوږونو او پوزه پرېکولو مه بدلوئ) ماشوم مه وژنئ، کله چې د مشرکانو له ډلې له خپل دوښمن سره مخامخ شوې؛ نو دریو شیانو ته یې راوبوله: هر یو یې چې درسره ومنئ؛ ترې قبول یې کړه او نور یې پرېږده، اسلام ته یې راوبوله، که یې درسره ومنئ ترې قبول یې کړه، بیا ورته ووایه چې له خپل هېواد څخه د مهاجرینو هېواد ته ولاړ شي، او خبر یې کړه چې که هغوی دا کار وکړي؛ نو هغوی لره ټول هغه حقوق ثابت دي چې مهاجرینوته ثابت دي او هغه مسولیتونه یې پر غاړه دي کوم چې د مهاجرینو پر غاړه دي، خو که هغوی د خپل هېواد له پرېښودو نټه وکړي او په خپل هېواد کې پاتې شي؛ نو بیا هغوی د مسلمانو بانده چیانو غوندې دي چې پر هغوی به د الله هغه حکمونه پلي کیږي کوم چې پرمؤمنانو پلي کیږي، خو تر څو یې چې له مسلمانانو سره یوځای جهاد نه وي کړی په غنیمت او ولجه کې به برخه نه لري، او که هغوی په اسلام کې له داخلېدو څخه نټه وکړي؛ نو بیا دې جزیه ورکړي، که یې دغه کار وکړ، بیا یې هم ورسره ومنه او نور کار مه پرې لره، او که له دغه کار څخه یې هم نټه وکړه؛ نو بیا د الله په مرسته له هغوی سره وجنګېږه او که دې د کومې قلعه (کلا) خلک محاصره کړل او هغوی له تا څخه د الله او د هغه د نبي ذمه وغوښتله؛ نو د الله او د هغه د نبي ذمه مه ورکوه، بلکې خپله او د ملګرو ذمه دې ورکوه، ځکه که چیرې د خپلو ذمو او ملګرو د ذمو په اړه خیانت وکړئ دا به آسانه وي تردې چې د الله او د هغه د رسول د ذمې په اړه خیانت وکړئ، که چیرې د کومې قلعه (کلا) خلک محاصره کړې



او هغوی له تا څخه وغواړي چې د الله د پرېکړې پر بنسټ ځای ورکړي؛ نو د الله د پرېکړې پر بنسټ يې مه منه ځکه تاسو ته نه ده معلومه چې الله به د هغوی په اړه څه پرېکړه کوي.

مسلم روايت کړی.

### په دغه خبره کې دېرې مسئلې دي:

**لومړی:** د الله او د هغه د نبي او مسلمانانو د ذمې ترمنځ توپير.

**دويمه:** له دوو کارونو څخه هغه يوه ته لارښوونه کول چې خطر يې کم وي.

**دريمه:** د هغه وينا : چې د الله پر نوم د الله په لار کې جهاد وکړئ.

**څلورمه:** د هغه وينا: له هغه چا سره وجنګېږئ چې پر الله يې کفر کړی دی.

**پنځمه:** د هغه وينا: پر الله مرسته وغواړه او له هغوی سره وجنګېږه.

**شپږمه:** د الله او د علماوو د پرېکړې ترمنځ توپير.

**اوومه:** دا چې صحابي د اړتيا پر مهال د يو څه په اړه پرېکړه کوي، هغه نه پوهيږي چې آيا دا به د الله له پرېکړې سره سمون لري او که نه؟.



## باب دی په بیان د دې کې چې پر الله د لوړې کولو په اړه څه راغلي دي.

له جندب بن عبدالله رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یو سړي وویل: پر الله قسم، فلاني ته الله ببښنه نه کوي، نو الله جل جلاله وفرمایل: څوک دی چې پر ما لوړه کوي چې زه به فلاني ته بخښنه نه کوم؟ پرته له شکه ما هغه ته بخښنه وکړه او ستا عمل مې له منځه یوړ. مسلم روایت کړی.

او د ابوهریره په حدیث کې دي چې وینا وال عبادت گزاره سړی و، ابوهریره ویلي دي. هغه داسې خبره وکړه چې خپله دنیا یې له منځه یوړه.

او خپل آخرت یې (هم له منځه یوړ).

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

**لومړی:** پر الله له لوړې کولو څخه وېرول.

**دویمه:** دا چې اور له موږ څخه یوه ته د هغه د څپلی له بند څخه ورنږدې دی.

**دریيمه:** دا چې جنت هم همدارنګه دی.

**څلورمه:** په دې کې د هغه د وینا شاهد دی: چې یو سړی به خبره کوي.......ترپایه.

**پنځمه:** دا چې کله یو سړي ته بخښنه د داسې یو څه له امله وشي چې هغه به ورته تر ټولو بد وي.


★★★★★★★★

## باب دی په بیان د دې کې چې الله به مخلوق ته سفارشي(شفیع) نه گرځوې.

له جبیربن مطعم رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: یو بانده چي (سارایي) نبي صلی الله علیه وسلم ته راغی، نو ویې ویل: اې د الله رسوله! خلک تباه شول، اولادونه وږي شول، مالونه له منځه ولاړل، زموږ لپاره دې د خپل پالونکي څخه باران وغواړه، څکه موږ پر تا الله ته سپارښتنه کوو، او پر الله تاته، نو نبي صلی الله علیه وسلم وفرمایل: الله لره پاکي ده، الله لره سپېڅلتیا ده!! نو همداسې یې د الله پاکي بیانوله تردې چې د هغه د صحابه و په مخونو کې دا خبره وپېژندل شوه، بیا یې وویل: الله دې پر تا ورحمیږي؛ آیا ته پوهېږې چې الله څه دی؟ د الله شان له دې څخه ډېر لوی دی، پر الله د هیچا سپارښتنه نه شي کېدلای.

او حدیث ذکر کړ، هغه ابوداؤد روایت کړی دی.

په دغه خبره کې ډېرې مسئلې دي:

لومړی: پر هغه چا رد کول چې وایي: موږ پر تا الله ته سپارښتنه کوو.

دویمه: د دغې کلمې له امله داسې بدلون راتلل چې د صحابه وو په مخونو کې وپېژندل شو.

دریمه: دا چې د هغه دا وینا یې رد نه کړه: چې موږ پر الله تاته سپارښتنه کوو.

څلورمه: د (سبحان الله )پر تفسیر تنبیه.

پنځمه: دا چې مسلمانان له نبي صلی الله علیه وسلم څخه د باران غوښتنه کوي.

★★★★★★★★

## باب دی په بیان د هغه څه کې چې د مصطفی ﷺ د ملاتړ په اړه راغلي چې هغه د توحید ملاتړ او د شرک د لارو بندول دي.

له عبدالله بن الشخير رضي الله عنه څخه روايت دی وايي: د بني عامر په ډله کې زه هم رسول الله صلی الله عليه وسلم ته ورغلم؛ نو ومو ويل: ته زموږ سردار يې.

هغه وفرمايل: سيد (سردار) الله تبارک و تعالی دی.

موږ وويل: ته زموږ تولو غوره يې او ترموږ تولو لوی يې.

هغه وفرمايل: همدغه وينا او ځينې وينا مو واياست، او هيڅکله دې شيطان تاسو زړور نه کړي.

دغه حديث ابوداؤد په ښه سند سره روايت کړی دی.

او له انس رضي الله عنه څخه روايت دی: چې ځينو خلکو وويل: اې د الله رسوله اې زموږ غوره، ترموږ تولو د غوره زويه زموږ سرداره او د موږ تولو د سردار زويه. نو هغه وفرمايل: اې خلکو! ځينې وينا مو وکړئ او هيڅکله دې شيطان تاسو ته څه ښکلې نه کړي، زه محمد د الله بنده او د هغه رسول يم، زه دا نه خوښوم چې تاسو ما له خپلې هغې مرتبې څخه لوړ کړی چې الله راکړې ده.

دغه حديث نسائي په جيد سند سره روايت کړی دی.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړی:** له غلو(بريد اوښتلو) څخه خلک وېرول.

**دويمه:** د هغه چا لپاره څه په کار دي چې ووايي چې ورته ويل شوي وي: ته زموږ سردار يې.

**دريمه:** د هغه وينا: چې هيڅکله دې شيطان تاسو دې باجرءته نه کړي، سره له دې چې هغوی حق ويلی و.

**څلورمه:** د هغه وينا: زه نه خوښوم چې تاسو ما له خپلې مرتبې څخه پورته کړئ.

★★★★★★★★

**باب دی په بیان د هغه څه کې چې د الله تعالی د دغې وینا په اړه راغلي. او هغوی د الله په حقه قدر(درناوی) ونه کړ، ځمکه به ټوله د قیامت په ورځ د هغه یو موټی وي او آسمانونه به یې په ښي لاس کې راټول وي، هغه پاک لوړ ذات دی له هغه څه څخه چې هغوی یې ورسره شریکوي.**

د الزمر سورت: ٦٧ ایت

له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی وایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم ته له احبارو څخه یو حبر(عالم) راغی ویې ویل: اې محمده، مونږ دا خبره مومو چې آسمانونه د الله په یوه گوته کې، ځمکې په بله گوته کې، ونې په بله گوته کې، اوبه په بله گوته کې، ثری (ترځمکې لاندې برخه) په بله گوته کې او ټول مخلوق په بله گوته کې به وي؛ نو وایي به: زه پاچا یم، نبي صلی الله علیه وسلم وخندل تردې چې وروستي غاښونه یې ښکاره شول د هغه عالم وینا یې تصدیق کړه بیا یې دغه آیت ولوست. او هغوی په حقه د الله قدر(درناوی) ونه کړ، ټوله ځمکه به د قیامت په ورځ د الله یو موټی وي.

او د مسلم په روایت کې دي: او غرونه او ونې به یې په یوه گوته کې وي، بیا به یې وښوروي، نو وایي به زه پاچا یم زه الله یم.

او د بخاري په روایت کې دي: هغه به اسمانونه په یوه گوته کې وکرځوي، اوبه او ثری به په بله گوته کې او ټول مخلوق په بله گوته کې. هغوی دواړو (بخاري او مسلم) روایت کړی دی.

او مسلم له ابن عمر څخه مرفوعا روایت کوي: د قیامت په ورځ به الله اسمانونه راټول کړي، بیا به یې په ښي لاس کې را واخلي، بیا به ووایي: زه پاچا یم، چیرې دي واک لرونکي او چیرې دي لویي کوونکي؟ بیا اووه ځمکې را ټولې کړي هغه په هغه بل لاس کې واخلي، بیا به ووایي: زه پاچا یم چیرې دي واک لرونکي او لویي کوونکي.

او له ابن عباس څخه روایت دی وایي: اووه اسمانونه او اووه ځمکې د رحمان (الله) په لاس کې داسې هم ندي لکه ستاسو د یوه په لاس کې چې د اوړي دانه وي.

**ابن جرير وايي:** يونس راته روايت کوي چې ابن وهب خبر راکړ، وايي: ابن زيد وويل: پلار مې راته روايت وکړ وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اووه اسمانونه د کرسۍ په نسبت داسې دي لکه اووه درهمونه چې په يو ډال کې واچول شي.

**او وايي:** چې ابوذر رضي الله عنه وفرمايل: ما له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واورېدل چې فرمايل يې: نه ده کرسي د عرش په نسبت مګر په شان د يو بنګړی چې په يو صحراء کې غورځولای شوی وي.

او له ابن مسعود څخه روايت دی وايي: د دنيا د اسمان او ورځېرمه اسمان ترمنځ پنځه سوه کاله واټن دی، بيا له هر اسمان څخه تر بل اسمان پورې پنځه سوه کاله واټن دی، د اووم اسمان او کرسۍ ترمنځ پنځه سوه کاله واټن دی، د کرسۍ او اوبو ترمنځ پنځه سوه کاله واټن دی، عرش بيا د اوبو پر سر دی او الله د عرش د پاسه(څنګه چې د هغه د شان سره لايق وي) دی، او ستاسو له کړنو څخه پر هغه هيڅ هم پټ ندي.

ابن مهدي له حماد بن سلمه څخه روايت کړی، هغه له عاصم څخه، هغه له زر څخه او هغه له عبدالله څخه، او مسعودي له عاصم، هغه له ابووائل او هغه له عبدالله څخه همدارنګه روايت کړی دی، حافظ ذهبي رحمه الله وايي: دغه روايت لره يو شمېر طرق دي.

او له عباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه څخه روايت دی وايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: آيا تاسې خبر ياست چې د اسمان او ځمکې ترمنځ څومره واټن دی؟ موږ وويل: الله او د هغه رسول ښه پوه دي: هغه وفرمايل: د هغو دواړو ترمنځ د پنځه سوه کلونو مزل دی، او له هر آسمانه تر بل اسمانه پنځه سوه کاله مزل دی، د هر اسمان پنډوالی د پنځه سوه کاله د مزل په اندازه دی، د اووم اسمان او عرش تر منځ يو درياب دی چې د هغه د تېټې او لوړې برخې ترمنځ لکه د اسمان او ځمکې غوندې واټن دی، او الله د دغه(عرش) د پاسه دی، او د بني آدم له کړنو هيڅ هم ترې پټ نه دي.

ابوداؤد او نورو دغه حديث روايت کړی دی.

پدې کې يو شمېر مسئلې دي:

**لومړۍ:** د الله تعالی د دغې وينا تفسير چې: توله ځمکه به د قيامت په ورځ د هغه په موټي کې وي.

**دويمه:** دا چې دغه او دې ته ورته علوم له هغو يهودو سره پاتې وو چې د نبي صلی الله عليه وسلم په زمانه کې وو، هغوی انکار ترې ونه کړ او تاويل يې کې ونه کړ.

**درېيمه:** دا چې لوی عالم کله نبي صلی الله عليه وسلم ته يادونه وکړه، د هغه تصديق يې وکړ او د دغه په سم بللو کې قرآن نازل شو.

**څلورمه:** د رسول الله صلی الله عليه وسلم له لوري د خندا کېدل؛ کله چې لوی عالم دغه لويه پوهه ياده کړه.

**پنځمه:** په ډاګه د لاسونو يادونه او دا چې اسمانونه د الله په ښي لاس کې دي او ځمکې يې په بل لاس کې.

**شپږمه:** څرګند د لاس نومول په چپ سره.

**اوومه:** دغه وخت د لويي کوونکي او ظالمانو يادونه.

**اتمه:** د هغه وينا: لکه د اوري دانه ستاسو د يوه په ورغوي کې.

**نهمه:** د اسمان په پرتله د کرسي (څوکۍ) لوی والی.

**لسمه:** د کرسي (څوکۍ په پرتله د عرش لوی والی.

**يوولسمه:** دا چې عرش له کرسي او اوبو پرته بل څه دی.

**دولسمه:** له يو اسمانه تر بل اسمانه څومره واټن دی.

**ديارلسمه:** د اووم اسمان او کرسي (څوکۍ) ترمنځ څومره واټن دی.

**څوارلسمه:** د کرسي (څوکۍ او اوبو ترمنځ څومره واټن دی.

**پنځلسمه:** دا چې عرش د اوبو له پاسه دی.

**شپاړسمه:** دا چې الله د عرش له پاسه دی.

**اوولسمه:** د اسمان او ځمکې ترمنځ څومره واټن دی.

**اتلسمه:** د هر اسمان پنډوالی سل کاله دی.

**نولسمه:** دا چې هغه درياب چې د اسمانونو له پاسه دی تيته او لوړه برخه يې پنځه سوه کاله واټن لري، والله اعلم

د توحيد کتاب د الله په فضل پای ته ورسېدی

★★★★★★★★

## فهرست